د قرآن کریم او احادیثو څخه
غورچاڼ شوي

مستند

# قرآني او نبوي ذکرونه او دعاګانې

لیکوال:
مولوي سمیع الله عابدزی

بسم الله الرحمن الرحيم

## د کتاب ځانګړنې:

د کتاب نوم: مستند قرآني او نبوي ذکرونه او دعاګانې
لیکوال: مولوي سمیع الله عابدزی
دچاپ کال: ۱۳۹۰
د چاپ وار: لومړی
د چاپ شمیر: ۱۰۰۰ ټوکه
خپرندوی **عنایت خپرندویه ټولنه**
درک: بورډ ناصر باغ سرک اوله کوڅه دویم دوکان
موبایل شمیرې: ۰۳۲۱۹۰۸۶۵۵۶---۰۳۰۰۵۸۴۱۳۰۳

گڼه موضوعات مخ

# لړليک

## موضوعات

گڼه | مخ



## له صحاح سته څخه غوره شوي ذکرونه او دعاګانې

موضوعات

مخ

ګڼه موضوعات مخ

| ګڼه | موضوعات | مخ |
|---|---|---|

| مخ | موضوعات | ګڼه |
|---|---|---|

| ګڼه | موضوعات | مخ |
|---|---|---|

| گڼه | موضوعات | مخ |
|---|---|---|


## له قران کریم څخه دعاګانې

# شپږ کلمې

## لومړۍ کلمهٔ طیبه:

لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ مُحَمَّدٌ الرَّسُولُ اللهِ

ژباړه: له الله تعالی پرته بل څوک دعبادت وړ نشته، محمد صلی الله علیه وسلم د الله جل جلاله رسول دی.

## دوهمه کلمهٔ شهادت

أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ.

ژباړه: زه شاهدي ورکوم چې د الله جل جلاله نه پرته بل څوک د عبادت وړنشته، هغه یو دی، سیال نه لري او شاهدي ورکوم چې محمدصلی الله علیه وسلم د الله تعالی بنده او رسول دی.

## دریمه د تمجید کلمه

سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ.

ژباړه: الله پاک دی ، ستاینې هغه لره دي، له الله ج پرته د عبادت وړ بل څوک نشته، الله پاک لوی دی، له ګناوو

دساتنې اود نېکو کارونو دکولو توفیق یوائې هغه ورکوي، هغه دلويي او شوکت څښتن دی.

## څلورمه د توحید کلمه :

لَآ إِلٰهَ إِلَّا اللهُ، وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ، لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، يُحْيِي وَيُمِيتُ، أَبَدًا أَبَدًا، ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ.

له الله پرته دعبادت وړ بل څوک نشته، سیال نه لري، پاچاهي اوستاینې هغه لره دي، ژوندي کول اومړه کول یې په واک کې دي، تل ترتله به ژوندی وي، دعزت او لويي څښتن دی اوښېګڼه یې په واک کې ده، الله تعالی په هرڅه قادر دی.

## پنځمه کلمه د استغفار

أَسْتَغْفِرُ اللهَ رَبِّيْ مِنْ كُلِّ ذَنْبٍ أَذْنَبْتُهُ عَمَدًا أَوْ خَطَأً، سِرًّا أَوْ عَلَانِيَةً، وَأَتُوبُ إِلَيْهِ مِنَ الذَّنْبِ الَّذِيْ أَعْلَمُ وَمِنَ الذَّنْبِ الَّذِيْ لَا أَعْلَمُ، إِنَّكَ أَنْتَ الْعَلَّامُ الْغُيُوْبِ، وَسَتَّارُ الْعُيُوْبِ وَغَفَّارُ الذُّنُوْبِ، وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ.

ژباړه: زه له هغه ذاته ښښنه غواړم چې زما رب دی، له هرې هغې ګناه څخه چې په قصد اویامې په هېره سره کړې وي، دهغه په دربار کې له هرې ګناه څخه چې په پټه مې کړې وي

او په ښکاره مې کړې وي او توبه کوم له هغه ګناه چې راته معلومه وي او یا راته نه وي معلومه، په تحقیق سره! ته په پټو عیبونو خبر یې! دعیبونو پټوونکی، دګناهونو ښونکې یې! له ګناه څخه د ساتنې او ښوکارونو دکولو توفیق یوازې ته ورکوې! په تحقیق سره ته د لویې او شوکت څښتن یې!

## شپږمه : له کفره د بې زارۍ کلمه

اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُبِكَ مِنْ أَنْ أُشْرِكَ بِكَ شَيْئًا وَأَنَا أَعْلَمُ، وَأَسْتَغْفِرُكَ لِمَا لَا أَعْلَمُ بِهِ، تُبْتُ عَنْهُ وَتَبَرَّيْتُ مِنَ الْكُفْرِ، وِالشِّرْكِ، وَالْكِذْبِ وَالْغِيْبَةِ، وَالْبِدْعَةِ، وَالنَّمِيْمَةِ، وَالْفَوَاحِشِ، وَالْبُهْتَانِ، وَالْمَعَاصِيْ كُلِّهَا وَأَسْلَمْتُ وَأَقُوْلُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ مُحَمَّدٌ رَسُوْلُ اللهِ.

یا الله! زه پرتا پنا غواړم له دې څخه چې له تاسره بل څه سیال وګڼم اوزه پرې پوهېږم اوله هغه شرک څخه چې پرې نه پوهېږم، یا الله! تاته توبه باسم له هر کفر، شرک، درواغو، غیبت، بدعت، چغل خورې،سپکو سپورو، تور لګولو اوټولو ګناهونو څخه او ما غاړه ایښې ستا دین ته او وایم چې: له الله تعالی پرته بل څوک دعبادت وړ نشته، محمد صلی الله علیه وسلم د الله جل جلاله رسول دی.[1]

(دیني ښوونه مفتي کفایت الله)[1]

# نبوي دُعاګانې

## د خوب نه د پورته کیدو دعا

«اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْهِ النُّشُورُ.»(۱)

ژباړه: ټول تعریفونه الله تعالی لره دي چې موږ ته یې مرګ نه پس ژوند راوبخښلو او هماغه ته ورتګ دی

## د اودس ماتې نه مخکې دعا

«اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ.»(۲)

ژباړه: یا الله زه په تا پنا غواړم د خبیثو نارینه او ښځینه پیریانو څخه.

## د اوداسه دعاګانې

د اودس د پوره کېدو څخه وروسته به د شهادت کلمه وایي او وروسته د کلمې دویلو څخه به لاندې دعا ولولي

«أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِي مِنَ التَّوَّابِينَ وَاجْعَلْنِي مِنَ الْمُتَطَهِّرِينَ ...»(۳)

ژباړه: زه شاهدي ورکوم چې د الله جل جلاله نه پرته بل څوک د عبادت ورنشته، هغه یو دی، سیال نه لري او شاهدي

۱- بخاری کتاب الدعوات باب ما یقول اذا نام.
۲- بخاری کتاب الوضوء باب ما یقول عند الخلاء.
۳- ترمذي کتاب الطهارة باب ما یقال بعد الوضوء.

ورکوم چې محمد صلی الله علیه وسلم د الله تعالی بنده او رسول دی، یا الله ما د هغوی څخه وګرځوې چې ډېر توبه کوونکي او ډېر پاکي حاصلونکي دي

## جومات ته د ننوتلو دعا

«اللَّهُمَّ افْتَحْ لِي أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ.»(۱)

ژباړه: یا الله ما ته د خپل رحمت دروازې خلاصې کړه.

## جومات څخه د وتلو دعا

«اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ.»(۲)

ژباړه یا الله زه ستا نه ستا د مهربانۍ سوال کوم.

## د لمانځه څخه وروسته دعا

### لومړی دعا

«اللَّهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ، وَمِنْكَ السَّلَامُ، تَبَارَكْتَ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ.»(۳)

ژباړه: یا الله ته د سلامتۍ څښتن يې او سلامتي ستا له لوري ده، برکت ستا له لورې دی ای د لويي او عزت خاونده.

### دویمه دعا

۲ـ«اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَى ذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ.»(۴)

۱ ـ مسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها باب مايقول إذا دخل المسجد
۲ ـ مسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها باب مايقول إذا دخل المسجد
۳ ـ مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلوة باب استحباب الذكر بعد الصلوة وبيان صفته.
۴ ـ ابو داود كتاب الصلوة باب الاستغفار.

ژباړه: يا الله كومک وکړې له ماسره ستا په يادولو شكر ويستلو او تاته په ښايسته عبادت كولو.

د مسلم شريف حديث دى چې: كه چا د هر فرض لمانځه څخه وروسته ۳۳ ځله (سبحان) ۳۳ ځله (الحمد لله) او ۳۳ ځله (الله اكبر) او يو ځل لاَ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْر. وويل نو ددغه بنده ټول ګناهونه به وبخښل شي كه څه هم ددرياب د ځګ په څېر وي.

## د خوراک او څښاک دعاګانې

### د ډوډۍ د خوړلو دعا

بسم الله الرحمن الرحيم.

اللهم بارك لنا فيه وأطعمنا خيرا منه.....(۱)

ژباړه: اې الله ته پکې زمونږ لپاره بركت واچوې او ددې نه غوره روزي راكړې.

كه له چا څخه د خوراک د شروع كولو په وخت كې بسم الله هېره شي او د خوراک په منځ يا اخره كې بسم الله ورياد شي نو دا دعا دې ولولي.

بِسْمِ اللهِ فِي أَوَّلِهِ وَآخِرِهِ.(۱)

۱- ترمذي كتاب الدعوات باب مايقول اذا أكل طعاما.

ژباړه: د خپل خوراک اول او اخر د الله تعالی په نامه سره شروع کوم.

**د ډوډۍ د خوړلو نه وروسته دعا**

«الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وَجَعَلَنَا مُسْلِمِينَ.»(٢)

ژباړه: ټولې ستاینې هغه الله تعالی لره دي چې مونږ ته ښه خوراک او څښاک راکړ او مونږ یې مسلمانان ګرځولي یو.

**د مریض د پوښتنې دعاګانې**

مریض ته دوه ځله داسې ووایې.

«لَا بَأْسَ طَهُورٌ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ(٣)

ژباړه: غم او اندیښنه پکار نده که الله تعالی غوښتل نو د ګناهونو څخه پاکوالی دی.

**مریض دې په دغه دعا دم کړای شي.**

اللّٰهُمَّ أَذْهِبِ الْبَأْسَ، رَبَّ النَّاسِ، وَاشْفِ فَأَنْتَ الشَّافِي، لَا شِفَاءَ إِلَّا شِفَاؤُكَ ، شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا.(٤)

ژباړه: اې الله دا تکلیف لرې کړې ، اې د ټولو خلکو پالونکیه ته شفا ورکړې او ته شفا (صحت) ورکوونکی یې ،ستا د شفا

١ ترمذی کتاب الأطعمة باب ما جاء فی تسمیة علی الطعام.
٢ – ترمذی کتاب الدعوات باب ما یقول إذ فرغ من الطعام.
٣ – بخاری کتاب المناقب باب علامات النبوة فی الإسلام.
۴ – مسلم کتاب السلام باب استحباب الرقیة علی المریض.

څخه پرته بل څوک شفا ورکوونکی نشته ، ته داسې شفا ورکړې چې یو ذره مرض یې هم پاتې نه شي.

## بازار ته د ننوتلو پر وخت دعا

«لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَهُوَ حَيٌّ لَا يَمُوتُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ...» (۱)

ژباړه: د الله تعالی څخه پرته بل معبود نشته هغه یوازې دی شریک نه لري بادشاهي د هغه لپاره ده اوهغه د ستاینی وړ دی ژوندي کول او مړه کول کوي هغه ژوندی دی مرګ پرې نه راځي خیر د هغه په لاس کې دی او هغه په هر څه باندې قدرت لري

## د ماشومانو د حفاظت لپاره دعا

أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّةِ مِنْ شَرِّ كُلِّ شَيْطَانٍ وَهَامَّةٍ وَمِنْ شَرِّ كُلِّ عَيْنٍ لَامَّةٍ.

ژباړه: زه (ستا لپاره) د الله تعالی د پوره کلمو په واسطې سره د هر شیطان ،زهرجن ځناور او ضرر رسوونکي سترګې څخه پناه غواړم.

## کله چې کوم انسان ته مصيبت ورسيږي نو دا دعا دی ولولي

(....إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعونَ.) «اللَّهُمَّ أْجُرْنِي فِي مُصِيبَتِي وَأَخْلِفْ لِي خَيْرًا مِنْهَا» (۲)

۱ – ترمذی کتاب الدعوات باب ما یقول إذا دخل السوق.
۲ – مسلم کتاب الجنائز باب ما یقال عند المصیبة.

ژباړه: بېشکه مونږ د الله تعالی یوو. او مونږ همده ته ورتلونکي یو. ای الله ماته پدې مصیبت باندې اجر او ثواب راکړې او ددې په بدل کې ماته غوره بدله راکړې.

## د قرض نه د خلاصي دعا

«اللّٰهُمَّ اكْفِنِي بِحَلَالِكَ عَنْ حَرَامِكَ وَأَغْنِنِي بِفَضْلِكَ عَمَّنْ سِوَاكَ.» (۱)

ژباړه: یا الله ما په خپل حلال رزق د حرامو څخه وساتې او ما په خپله مهربانی سره د نورو څخه بې پروا کړه.

## ددوزخ نه دبچ کیدو دعا

«اللّٰهُمَّ أَجِرْنِي مِنَ النَّارِ» (۲)

ژباړه: یا الله ما ددوزخ له اوره وساتې.

## د نوی میاشت د لیدو دعا

«اللّٰهُمَّ أَهِلَّهُ عَلَيْنَا بِالْيُمْنِ وَالْإِيمَانِ وَالسَّلَامَةِ وَالْإِسْلَامِ وَالتَّوْفِيقِ لِمَا يُحِبُّ رَبُّنَا وَيَرْضَى رَبُّنَا وَرَبُّكَ اللّٰهُ.» (۳)

ژباړه: یا الله دا میاشت په مونږ باندې د برکت، ایمان، سلامتی او اسلام، اوستا د خوښی او رضا د اعمالو د

۱ - ترمذی کتاب الدعوات باب فی دعاء النبی ﷺ
۲ - ابوداود کتاب الأدب باب ما یقول إذا أصبح.
۳ - از اول تا قول والتوفیق متن ترمذی است وبعد از آن از دارمی چیده ام

توفيق سره راختلي وساتي ، اى سپوږمۍ زمونږ رب او ستا رب الله تعالى دى.

**د نوى كال دعا**

اللَّهُمَّ أَدخله عَلَيْنَا بِالأَمْنِ وَالإِيمَانِ وَالسَّلاَمَةِ وَالإِسْلاَمِ وَجِوارٍ مِنَ الشَّيْطَانِ وَرِضْوَانٌ مِنَ الرَّحْمَنِ.(۱)

ژباړه: يا الله دا نوى كال په مونږ باندې د امن او ايمان سره او د سلامتۍ او اسلام سره او د رحمن د رضامندۍ سره او د شيطان څخه د لرې والي سره داخل كړه

**نوي واده كړى ته دعا**

بَارَكَ اللهُ وَبَارَكَ عَلَيْكَ وَجَمَعَ بَيْنَكُمَا فِي خَيْرٍ(سنن اربعه)

ژباړه: الله تعالى دې تاته بركت دركړي او پر تاسې دې بركت نازل كړي او ستاسې د دواړو په منځ كې دې د خير جوړښت نصيب كړي.

**د هينداري(شيشې) ته دكتلو په وخت دعا**

اَللهُمَ اَنْتَ حَسَنْتَ خَلْقِيْ فَحَسِنْ خُلُقِيْ.

ژباړه: يا الله تا زما صورت ښايسته پيدا كړى دى نو زما اخلاق هم ښايسته كړې.

۱ – معجم الصحابه لابى القاسم عبد الله محمد البغوى المتوفى سنه ۳۱۷ درمجلد سوم. وهمچنان در كتاب الترهيب والترغيب لابو القاسم اسماعيل بن محمد بن الفضل الاصبهانى متوفى سنه ۵۳۵ در فصل دعاء دخول سنه.

**د پرنجي (عطسه، انکشه) دعا**

څوک چې پرنجی وکړی نو اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ دې ووايي څوک چې اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ واوري نو يَرْحَمُكَ اللهُ دې ووايي پرنجی کوونکی به ورته په جواب کې يَهْدِيْكُمُ اللهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ وايي.

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ (ټولې ستاينې الله تعالی لره دي)

يَرْحَمُكَ اللهُ (الله تعالی دې پر تا رحم وکړي)

يَهْدِيْكُمُ اللهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ (الله تعالی دې تاسو ته هدايت وکړي او ستاسو حال دې الله تعالی ښه کړي.)

**ښار ته دداخليدو دعا**

أَسْأَلُكَ خَيْرَهَا وَخَيْرَ مَا فِيْهَا وَأَعُوْذُبِكَ مِنْ شَرِّهَا وَشَرِّ مَا فِيْهَا. (طبراني)

ژباړه: يا الله زه ستا نه ددې ښار او څه چې پدې کې دي د هغې ټولو د خير سوال کوم او ددې ښار او څه چې پدې کې دي د هغې ټولو د شر نه ستا پنا غواړم.

**کورته د ننوتلو دعا**

اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ الْمَوْلَجِ وَخَيْرَ الْمَخْرَجِ بِسْمِ اللهِ وَلَجْنَا وَبِسْمِ اللهِ خَرَجْنَا وَعَلَى اللهِ رَبِّنَا تَوَكَّلْنَا.(۱)

ژباړه: یا الله زه ستا نه د ننه راتللو او وتلو خیر غواړم ، د الله تعالی په نوم مونږ راننوتلو او د الله تعالی په نوم ووتلو او په الله تعالی باندې مونږ توکل وکړو.

**له کور څخه د وتلو دعا**

بِسْمِ اللهِ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللهِ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ.(۲)

ژباړه: د الله تعالی په نوم ووتم په هغه مې توکل وکړ د نېکۍ د کولو او د ګناه نه د بچ کېدلو قوت د الله تعالی د کومک څخه پرته نشته.

**د سفر دعا**

لومړی به بسم الله ووايي کله چې په موټر ،بېړۍ ،جهاز(الوتکې)......کې کېني نو الحمد لله به ووايي او دا دعا به ولولي.

سُبْحَانَ الَّذِيْ سَخَّرَ لَنَا هٰذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِيْنَ وَإِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُوْنَ.

۱ - ابو داود در کتاب الأدب باب ما یقول الرجل إذا دخل بیته روایت کرده.

۲ - ترمذی در کتاب الدعوات باب ماجاء ما یقول الرجل إذا خرج من بیته روایت کرده.

ژباړه: هغه ذات پاک دی چا چې دا (سورلی) زمونږ لپاره تابع کړي او مونږ د هغه د قدرت نه پرته د دې قابو کوونکی نه یو او مونږ به بیرته هماغه پالونکې ذات ته ورګرځو.

**قبر ته د ورتلو دعا**

السَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْقُبُورِ يَغْفِرُ اللهُ لَنَا وَلَكُمْ أَنْتُمْ سَلَفُنَا وَنَحْنُ بِالأَثَرِ.(1)

ژباړه: اې د قبر خاوندانو! په تاسو دې سلام وي، مونږ او تاسې ته دې الله ببښنه وکړي تاسې زمونږ څخه مخکې تللی یاست او مونږ به له تاسې څخه وروسته درتلو والا یو.

1- ترمذی در کتاب الجنائز باب ما یقول الرجل إذا دخل المقابر.

## له صحاح سته څخه غوره شوي ذکرونه او دعاګانې

يادونه:لاندې ټولې دعاګانې د حافظ ضياءالدين المقدسي د کتاب(فضايل الاعمال) څخه چې مولوي سميع الله عابدزی پښتو ته ژباړلی راخيستل شوي دي چې تفصيل يې هلته کتلی شئ.

## د الله تعالی د يادولو ثواب

۶۰۷-ابی هريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايي چې الله تعالی فرمايلي دي زه د خپل بنده سره هغه څه کوم چې پر مايې ګومان کوي او زه د هغه سره يم کله چې دی ما ياده وي که بنده ما د خپل ځان سره په پټه يادوي نو زه به يې هم د ځان سره ياد کړم او که بنده زه په کومه ډله کې ياد کړم نو زه به يې د هغې څخه په غوره ډله کې ياد کړم که بنده ماته يو لويشت رانژدې شي نو زه به ورته يو ګز ور نژدې شم که بنده ماته يو ګز رانژدې شي نو زه به هغه ته دواړو لاسونو د خورولو په اندازه ورنژدې کيږم او که کوم بنده زما طرف ته را روان شي نو زه په منډه ورته نژدې ورشم (بخاري او مسلم)

## ملايکې د ذکرينو په ډله کې ګډون کوي

۶۰۸-ابي هريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ ويلي دي الله تعالی په ملايکو کې يو ګرځنده ډله ده چې ډېره زياته ده چې د الله تعالی د ذاکرينو ډله لټوي کله چې هغوی داسې مجلس ومومي چې په هغې کې د

الله تعالی ذکر کېږي نو دغه ملايکې د ذکر کوونکو د ډلې سره کېني پدغه وخت کې دغو ملايکو د ډېر والي له امله يو بل سره په خپلو وزرو پټ کړي وي تر دې چې دغه ملايکې ددنيا د اسمان تر ټوله فضا ډکه کړي کله چې مجلس ختم شي او دوی سره بېل شي نودغه ملايکې پورته د اووم اسمان په لوري خېژې رسول الله ﷺ وويل چې الله تعالی په داسې حال کې ددغو ملايکو څخه پوښتنه کوي چې هغه ښه پوهېږي او ورته وايي چې د کوم ځای څخه راغلی پس ملايکې وايي مونږ ستا د هغو بنده ګانو د مجلس څخه راغلو چې په ځمکه کې يې ستا پاکي بيانوله ستا لويي يې بيانوله د ستا کلمه يې لوستله ستا ستاينه يې کوله او يوائې له تا څخه يې سوال کاوه الله تعالیٰ ورته وايي زما څخه يې څه غوښتل نو ملايکې ورته وايي له تا څخه يې جنت غوښتلو الله تعالی ملايکو ته ووايي ايا هغوی جنت ليدلی دی ملايکې ووايي نه ای زمونږ ربه بيا الله تعالی ملايکو ته ووايي د هغوی به څه حال وي که چېرته جنت ويني بيا ملايکې ووايي يا الله هغوی له تا نه پناه هم غوښته الله تعالی ورته ووايي د څه شي نه يې پناه غوښتله ملايکې ورته ووايي ستا د اور څخه يې پناه غوښته الله تعالی ورته ووايي ايا هغوی زما اور ليدلی دی ملايکې ووايي نه يا الله هغوی ستا اور ندی ليدلی الله تعالی ووايي د هغوی به څه حال وي که چېرې زما اور ويني ملايکې ووايي ستانه يې ښښنه هم غوښتله رسول الله ﷺ وويل چې الله تعالی ملايکو ته ووايي بېشکه ما دوی ته ښښنه وکړه او دوی ته مې هغه څه ورکړل چې د کومو شيانو سوالونه يې چې کړي دي د کوم شي څخه دوی پنا غوښتې د هغې

ځخه مې بچ كړل رسول الله ﷺ وويل ملايكې ووايي اى ربه ېدوى كې ستا يو ډېر ګناهګار فلانى بنده هم وه چې په هغه لاره تيرېده او له دوى سره كښيناسته رسول الله ﷺ ورته وويل چې الله تعالى وايي چې ده ته مې هم ښښنه وكړه ځكه چې ذاكرين داسې قوم دى چې ددوى سره كښيناستونكي هم زما د رحمت ځخه نه بې برخې كېږي (بخاري او مسلم)

## بيا هم د ذكر ثواب

۶۰۹-ابي هريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ د مكې معظمې په يوه لاره تيريده نو د جمدان په غره ورغى رسول الله ﷺ وويل درځى دغه د جمدان غر دى چې مفردينو ورته وړاندې والى كړى دي اصحابو وويل اى د الله تعالى رسوله مفردين څوك دي رسول الله ﷺ وويل مفردين هغه نارينه او ښځينه دى چې الله تعالى ډېر يادوي (مسلم)

## ذاكرين الله تعالى په خپل رحمت كې پټوي.

۶۱۰-ابي هريره رضي الله عنه او ابي سعيد خدري رضي الله عنه دواړه ګواهي وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي هيڅ يو قوم ددې لپاره نه كيني چې الله تعالى ياد كړي مكر دا چې ملايكې ورځخه د احترام په خاطر تاوېږي او الله تعالى يې پخپل رحمت كې پټوي په هغوى باندې داد او سكون نازلوي او الله تعالى به يې په هغه ډله كې ياد كړي چې الله تعالى سره دي چې هغه ملايكې دي (مسلم)

## د ذاكرينو په ټولنه الله تعالى فخر كوي

۶۱۱-معاويه بن ابي سفيان ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ د خپلو اصحابو پر يوه مجلس ورغی رسول الله ﷺ هغوی ته وويل تاسو څه شي دلته کينولي ياست اصحابو وويل مونږ دلته ددې لپاره ناست يو چې الله تعالی ياد کړو د هغه حمد او ثنا ووايو ځکه چې هغه مونږ د اسلام په لورې هدايت کړي يو او په مونږ يې د اسلام په راوړلو احسان کړی دی رسول الله ﷺ وويل چې ستاسو دې په الله قسم وي چې تاسي نه ياست کينولي مګر همدې خبرې کينولي ياستی اصحابو وويل په الله تعالیٰ قسم چې مونږ د الله تعالیٰ ذکر کينولی يو رسول الله ﷺ ورته وويل ما تاسو ته هسې د بی باورۍ او د تهمت له کبله قسم نه دی درکړی ليکن ماته همدا اوس جبرائيل عليه السلام راغی او راته يې وويل چې بېشکه الله جل جلا له چې لوی شان لري ستاسو په ټولنه باندې په ملائيکو فخر کوي (مسلم او ترمذي)

## بيا هم د ذکر ثواب

۶۱۴-ابي هريره ﷛ د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي چې الله تعالی فرمايلي دي زه تر هغې پورې د خپل بنده سره يم چې هغه ما يادوي او زما په يادولو يې دواړه شونډې خوځېږي (ابن ماجه)

## د الله تعالی له لورې د اخرت خیر د چا په برخه دی

٦١٥- معاذ بن جبل ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي هیڅ کوم مسلمان به داسې نه وي چې د شپې په اوداسه زما په یادولو ویده شي نو د شپې له لورې راپورته شي او د الله تعالی څخه ددنیا او اخرت خیر وغواړي مګر الله تعالی به ورته ددنیا او اخرت ښېګړه ور په برخه کړي (ابن ماجه او نسائي)

## د دعا کولو ثواب

٦١٦-ابي هريره ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ ویلي دي د الله تعالی په دربار کې ستاسې د هر یوه دعا قبلیږي خو چې له تادی څخه کار وانخلئ رسول الله ﷺ وویل یو بنده ونه وایي چې ما د الله تعالی څخه غوښتنه وکړه مګر الله تعالی زما دعا قبوله نکړه (بخاري او مسلم)

## بیا هم ددعا ثواب

٦١٧- ابي هريره ﷺ د رسول الله ﷺ څخه روایت کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي د یوه مسلمان بنده دعا او غوښتنې خامخا منل کیږي تر څو چې پر ګناه او د خپلولۍ د رشتي په پرې کولو نه وي ولاړ او له تادۍ څخه کار وانخلي چا پوښتنه وکړه ای دالله تعالی رسوله تادي څه ته وایي رسول الله ﷺ وویل دا چې یو بنده ووایي ما د الله تعالی څخه وغوښتل مګر زما غوښتنه یې ونه منله له دې سره بنده افسوس او فریاد وکړي او دعا کول پرېږدي (مسلم)

## الله تعالى د سوال كوونكى سوال قبلوي

۶۲۳-جابربن عبد الله ﷛ وايي چې د رسول الله ﷺ څخه مې اوريدلي دي چې هغه فرمايلي دي هيڅ كوم بنده به داسې نه وي چې د الله تعالى څخه كوم سوال وكړي مګر الله تعالى به يې سوال قبول كړي يا به يې د سوال كولو په بدل كې ګناهونه ورته وبښي دا په داسې حال كې ده چې ييا ګناه ونكړي او د خپلولۍ ريښې پرې نكړي(ترمذي)

## د الله تعالى سره هر څه زيات دي

۶۲۴-عبادہ بن صامت ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي د ځمكې پر مخ به هيڅ مسلمان داسې نه وي چې د الله تعالى څخه كوم سوال وكړي مګر الله تعالى هغه څه وركوي چې دى يې غواړي او يا ورته كومه ګناه ښښي تر څو چې دى بله ګناه ونكړي او يا د خپلولۍ ريښې پرې نكړي يو سړي وويل كه مونږ ډېر څه وغواړو؟ رسول الله ﷺ ورته وويل چې د الله تعالى سره هر څه زيات دي (ترمذي)

## په خوشحالۍ پر وخت د الله تعالى سوال كول غم كموي

۶۲۵-ابي هريره ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي څوك چې پدې خوشحالېږي چې الله تعالى يې په سختيو تكليفونو او مصيبتونو سوال قبول كړي نو دېراخۍ په وخت كې دې د الله تعالى څخه زيات سوالونه كوي(ترمذي)

## هغه دعا چې په ویلو یې هیڅ شئ چاته ضرر نشي رسولای

۷۱۵-عثمان بن عفان رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي دي هیڅ کوم بنده به داسې نه وي چې د هرې ورځې سهار او ماښام درې کرته دا دعا ووايي چې (بِسمِ اللهِ الَّذِي لاَ يَضُرُّ مَعَ اسْمِهِ شَيْءٌ فِي الأَرْضِ وَلا فِي السَّمَاءِ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمِ) او بیا دې کوم شی د ته ضرر ورسوي(ابو داود ،ترمذي،ابن ماجه ، نسايي او ترمذي )یعنې هیڅ شی به ورته تاوان ونه رسوي.

## هغه بنده چې الله ورځخه خوشحالیږي

۷۱٦-ثوبان رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي څوک چې د شپې له لورې دا دعا ووايي چې زه د الله تعالی په ربوبیت او د محمد صلی الله علیه وسلم په نبوت او د اسلام په دین خوښ او خوشحاله یم نو ددغه بنده په الله تعالی باندې حق دی چې الله تعالی ورځخه خوشحاله او راضي شي ( ترمذي)

## هغه بنده چې جنت ورته واجب شو

۷۱۷-ابي سعید خدري رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي څوک چې دا ووايي چې زه د الله تعالی په ربوبیت د محمد صلی الله علیه وسلم په رسالت او د اسلام په دین خوښ او خوشحاله یم نو ددې کس لپاره جنت واجب شو(ابو داود او نسايي)

## هغه دعا چې د قيامت په ورځ پرې الله تعالي د بنده څخه راضي کيږي

۷۱۸-ابي سلامه ﷺ خادم النبي ﷺ د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي دی وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي هيڅ يو مسلمان هيڅ يو انسان او هيڅ يو بنده به داسې نه وي چې د سهار او ماښام په وخت کې دا ووايي چې زه د الله تعالى په ربوبيت د محمد ﷺ په رسالت او داسلام په دين خوښ او خوشحاله يم مګر دا چې دغه بنده په الله تعالى باندې حق لري چې د قيامت په ورځ يې خوښ او خوشحاله کړي(ابن ماجه)

ابي سلامه د رسول الله ﷺ خدمتګار وو هغه وايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه داسې اوريدلي دي چې د حديث په اخر کې د قيامت ورځ نده ياده شوي)

## هغه دعا چې بنده يې د شپې له لورې ووايې نو هيڅ شی ورته ضرر نشي رسولای

۷۱۹- ابي هريره وايي چې رسول الله ﷺ ته يو سړی راغی او ورته يې وويل چې ای د الله تعالى رسوله! زه نن د يو لړم سره مخ شو او ويې چيچلم رسول الله ﷺ ورته وويل چې که چيرې تا د شپې د ويده کيدو په مهال دا کلمې ويلې وای نو تاته به لړم هيڅ ضرر نه وی رسولی هغه کلمې دادي (أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ لَمْ تَضُرَّكَ") (مسلم)

## په سفر کې د ویده کیدو په مهال دعا

۷۲۰-خوله بن حکیم السلیمه رضي الله عنها وايي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي دي کله چې له تاسو څخه څوک په سفر روان شي او د شپې په کوم ځای کې واړوي نو هغه دې د ویده کیدو په مهال دا کلمې ووايي ((أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ)) تر هغې به دغه کس ته کوم شی ضرر ونه رسوي تر څو يې د هغه ځای څخه بار کړي (مسلم)

## هغه دعا چې په ویلو يې الله تعالی د بنده ساتندوی شي او شیطان ور څخه لیري شي

۷۲۱-انس بن مالک رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي څوک چې د کور څخه د وتلو پروخت کې دا کلمې ووايي ((بِسْمِ اللهِ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللهِ؛ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ))نو یو غیبي اواز وشي او ورته وویل شي ستا لپاره دې کلمو کفایت وکړ ته د الله تعالی له لوري په سمه لاره شوي او الله تعالی ستا ساتندوي دی نو شیطان به ورڅخه لري ولاړ شي (ترمذي) (نسايې د شپې او ورځې عمل کې ذکر کړی)

## هغه دعا چې ویل يې د بنده لپاره کفایت کوي

۷۲۲-ابي هریره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي کله چې یو کس د خپل کور ددروازې څخه ووځي نو دده سره دوه ملایکې مل وي

چې په ده باندې مقرري وي کله چې دغه کس ووايي چې بسم الله نو دغه ملايکې وايي چې سمه لاره دې وموندله او کله چې لا حول ولا قوة الا با الله ووايي نو ملايکې ورته ووايي چې ته اوس د الله په ساتنه کې شوې او کله چې دغه کس ووايي چې توکلت على الله نو ملايکې ورته وايي چې دغه کلمې ويل ستا لپاره بس دي، راوي وايي چې رسول الله ﷺ وويل کله چې ملايکې د خپلو ملګرو سره يو ځای شي نو خپلو منځو کې وايي تاسو دداسې سړي څخه څه غواړئ چې هغه ته سمه لاره ښوول شوي وي الله تعالى د خپل ځان لپاره کافي ګڼي او الله تعالى يې ساتنه کوي(ابن ماجه)

## هغه دعا چې د شپې او ورځې شکر پرې ادا کيږي

۷۲۳-عبد الله بن غنام البياضي رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي څوک چې د سهار په وخت دا دعا ووايي هيڅ يو نعمت ماته د سهار په وخت کې ندی راکړی شوي مګر هغه نعمت ستاله پلوه راکړل شوی دی ته يو يې شريک نلري ټولې ستاينې تا لره دي او يوازې ستا مننه بايد وشي بېشکه دغه کس ددې ورځې د شکر په ځای کړ او چاچې د شپې له پلوه همدغه دعا ولوسته بېشکه دغه کس د شپې شکر پر ځای کړ(ابو داود او نسايي)

## د دوزخ له اور څخه د ټول بدن بچ کيدل

۷۲۴-انس بن مالک رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي څوک چې د سهار او ماښام په وخت کې دا دعا لولي(: أَللّٰهُمَّ إِنِّيٓ أَصْبَحْتُ أُشْهِدُكَ،

چې په ده باندې مقرري وي کله چې دغه کس ووايي چې بسم الله نو دغه ملايکې وايي چې سمه لاره دې وموندله او کله چې لا حول ولا قوة الا با الله ووايي نو ملايکې ورته ووايي چې ته اوس د الله په ساتنه کې شوې او کله چې دغه کس ووايي چې توکلت على الله نو ملايکې ورته وايي چې دغه کلمې ويل ستا لپاره بس دي، راوي وايي چې رسول الله ﷺ وويل کله چې ملايکې د خپلو ملګرو سره يو ځای شي نو خپلو منځو کې وايي تاسو دداسې سړي څخه څه غواړئ چې هغه ته سمه لاره ښوول شوې وي الله تعالى د خپل ځان لپاره کافي ګڼي او الله تعالى يې ساتنه کوي(ابن ماجه)

## هغه دعا چې د شپې او ورځې شکر پرې ادا کيږي

۷۲۳-عبد الله بن غنام البياضي رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي څوک چې د سهار په وخت دا دعا ووايي هيڅ يو نعمت ماته د سهار په وخت کې ندی راکړی شوي مګر هغه نعمت ستاله پلوه راکړل شوی دی ته يو يې شريک نلري ټولې ستاينې تا لره دي او يواځې ستا مننه بايد وشي بيشکه دغه کس ددې ورځې د شکر په ځای کړ او چاچې د شپې له پلوه همدغه دعا ولوسته بيشکه دغه کس د شپې شکر پر ځای کړ(ابو داود او نسايي)

## د دوزخ له اور څخه د ټول بدن بچ کيدل

۷۲۴-انس بن مالک رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي څوک چې د سهار او ماښام په وخت کې دا دعا لولي(: اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَصْبَحْتُ أُشْهِدُكَ،

وَأُشْهِدُ حَمَلَةَ عَرْشِكَ، وَمَلَائِكَتَكَ، وَجَمِيعَ خَلْقِكَ، أَنَّكَ أَنْتَ اللهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ، وَأَنَّ مُحَمَّداً عَبْدُكَ وَرَسُولُكَ) نو الله تعالى ددغه کس دبدن څلورمه برخه د اور څخه ساتي او چاچې پورته دعا دوه کرته وويله نو الله تعالى به يې د بدن نيمه برخه د اور څخه وساتي او چاچې پورته دعا درې کرته وويله نو الله تعالى به يې د بدن دريمه برخه د اور څخه وساتي او چاچې څلور کرته وويله نوالله تعالى به يې ټول بدن د اور څخه وساتي (ابو داود)

## په شپه کې د کړې ګناه ښښنه

۷۲۵-انس رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي څوک چې د سهار په وخت دا دعا ووايي(اللَّهُمَّ أَصْبَحْنَا نُشْهِدُكَ، وَنُشْهِدُ حَمَلَةَ عَرْشِكَ، وَمَلَائِكَتَكَ، وَجَمِيعَ خَلْقِكَ بِأَنَّكَ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ وَحْدَكَ لَا شَرِيكَ لَكَ، وَأَنَّ مُحَمَّداً عَبْدُكَ وَرَسُولُكَ)نو الله تعالى به ورته هغه ګناه وبښي چې پدې شپه کې يې کړې وي (ترمذي او نسايي)

## د هر فرض لمونځ څخه وروسته ذکر

له ابي هريره نه روايت دی ، دی وايي چې دمهاجرينو غريبانان رسول الله ﷺ ته ورغلل او ورته ويې ويل چې : بډايان او مالدار خلک ښايسته ځايونو او لوړو درجو ته ورسيدل رسول الله ﷺ ورته وويل دا څنګه هغوی وويل مالدارن هم زمونږ په څير لمونځونه کوي او روژې نيسي لکه چې مونږ روژې نيسو هغوی خيراتونه

کوي مونږ يې نشو کولای هغوی غلامان ازادوي مونږ يې نشو ازادولای نو رسول الله ﷺ ورته وويل ايا تاسو ته داسې څه در ونه ښايم چې هغه ثوابونه پرې ومومئ کوم چې هغوی موندلي دي، او نه به وي هېڅوک غوره له تاسو مګر هغه څوک چې هغه عمل وکړي چې تاسو يې کوئ هغوی وويل ولې نه ای د الله تعالی رسوله ! مونږ ته وښايه نو رسول الله ﷺ ورته وويل د هر فرض لمانځه نه وروسته ۳۳ کرته (سبحان الله) ۳۳ کرته(الحمد لله)۳۳ کرته(الله اکبر) وايي ابو صالح وايي د مهاجرينو غريبانان بيا رسول اللهﷺ ته راغلل او ويې ويل زمونږ مالدارانو ورونو زمونږ پورته تسبيحات واوريدل هغوی يې هم زمونږ په شان د هر لمانځه نه وروسته وايي نو رسول الله ورته وويل چې دا د الله تعالی فضل دی چاته چې يې خوښه شي ورکوي يې(بخاري او مسلم)

**هغه ذکر چې رسول الله ﷺ د هر فرض لمونځ وروسته د هغه حکم کړی دی**

۸۹- له زيد بن ثابت ؓ نه روايت دی ، دی وايي چې مونږ ته امر شوی وه چې د هر فرض لمانځه نه وروسته ۳۳ کرته سبحان الله ۳۳ کرته الحمد لله او ۳۴ کرته الله اکبر ووايو راوي وايي چې يو سړي خوب کې وليدل چې تاسو ته خود ۳۳ کرته سبحان الله ۳۳ کرته الحمدلله او ۳۴ کرته الله اکبر ويلو امر شوی وه که څوک ورسره لا اله الا الله ويل غواړي نو ۲۵ کرته دې ووايي ما ددې خبرې يادونه رسول الله ﷺ ته وکړه هغه راته وويل تاسو حق خوب

ليدلی دی همداسې وکړئ يا يې دې ته ورته خبره ورته وکړه (امام احمد اونسائي)

## هغه ذکر چې په ويلو يې د درياب د ځګ په اندازه ګناهونه ببنل کيږئ

۹۰- له ابي هريره ﷺ نه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چا چې د هر فرض لمانځه نه وروسته ۳۳ کرته سبحان الله ۳۳ کرته الحمدلله او ۳۳ کرته الله اکبر وويل نو دغه ۹۹ تسبحيات شول او د ( لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ) په ويلو سره ۱۰۰ پوره کيږي نو ددغه بنده ټول ګناهونه به وببنل شي که ددرياب د ځګ په اندازه هم وي (مسلم)

## هغه ذکر چې د ميزان په تله کې د زر کرته ويلو هومره ثواب لري

۹۱- له عبد الله بن عمر ﷺ نه روايت دی ،دی وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې دوه خويونه دي چې ياد به يې نکړي يو مسلمان سړی مګر جنت ته به ننوځي دواړه زيات اسان دي مګر عمل پرې لږ کسان کوي هغه دادي : څوک چې د هر فرض لمانځه نه وروسته لس کرته سبحان الله لس کرته الحمدلله او لس کرته الله اکبر ووايي راوي وايي چې ما رسول الله ﷺ ليدلی وه چې د لاس په ګوتو به يې شميرل راوي وايي چې رسول الله ﷺ وويل

دغه الفاظ په ژبه پنځوس کرته کېږي مګر د میزان په تله ۵۰۰ پنځه سوه کرته ویلو ثواب لیکل کېږي او کله چې کوم بنده د ملاستې ځای ته ورځي ۳۳ کرته سبحان الله ۳۳ کرته الحمد لله او ۳۴ کرته الله اکبر ووايي نو داکلمې سل پوره کېږي مګر د میزان په تله کې ډېر زر کرته ویلو ثواب لیکل کېږي نو له تاسې نه کوم کس داسې شته چې په یوه ورځ کې دوه زره پنځه سوه ګناهونه وکړي د یارانو وویل ولې یې نه شمیرې بیا رسول الله ﷺ وویل له تاسې نه یوه ته شیطان راځي پداسې حال کې چې هغه د لمانځه په ځای کې وي او ورته وايي هغه څه دریاد کړه هغه څه دریاد کړه ممکن دغه کس دا کار ونکړي تر دې چې شیطان ورنه ولاړ شي کله چې دغه کس د ملاستې ځای ته ولاړ شي شیطان کوښښ کوي چې په همداسې وسوسو کې یې ویده کړي( ابوداود او ترمذي)

## هغه ذکر چې په ویلو یې الله تعالی انسان ښښي او لمونځ یې قبلوي

۹۳- له عباده بن صامت ﷺ نه روایت دی هغه وايي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي: څوک چې د شپې له مخې راپورته شي او داسې ووايي چې (لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، الْحَمْدُ للهِ؛ وَسُبْحَانَ اللهِ، واللهُ أَكْبَرُ؛ وَ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللهُ؛

﴿وَلاحَولَ وَلا قُوَّةَ إِلا بِاللهِ﴾ لدې وروسته ووايي يا الله ماته ببښنه وکړې يا يې بله غوښتنه وکړه الله تعالی به يې دعا قبوله کړي او که اودس يې وکړ او لمونځ يې ادا کړنو لمونځ به يې د الله تعالی په دربار کې قبول شي. (بخاري)

## هغه ذکر چې په ويلو يې انسان ته سل نيکۍ ليکل کيږي او سل بدۍ لرې کيږي او د شيطان له شر څخه خلاصيږي

۹۴- له ابي هريره رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي څوک چې په ورځ کې سل کرته ﴿لا إِلَهَ إِلا اللهُ وَحْدَهُ لا شَرِيْكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيءٍ قَدِيرٌ﴾ ووايي نو د لسو غلامانو د ازادولو اجر به ورکړل شي، سل نېکۍ به يې په عمل نامه کې وليکل شي ، سل بدۍ به ورته وبښل شي او په دغه ورځ به د شيطان له شر نه په امن کې وي تر دې چې بيګاه شي او هېڅوک به په دې ورځ له ده نه غوره عمل کولو والا رانشي مګر هغه څوک چې له ده نه يې پورته کلمې زياتې ويلي وي او چا چې په ورځ کې سل ځله سبحان الله وبحمده وويلې نو الله به ورته ببښنه وکړي که څه هم ګناهونه يې د درياب د ځګ په اندازه وي (بخاري او مسلم)

## هغه ذکر چې په ويلو يې انسان ته د څلورو غلامانو د ازادولو هومره ثواب ليکل کيږي

۹۵-له ابو ايوب انصاري ﷺ نه روايت دى هغه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چا چې لس ځله لا اله الا الله وحده لا شريک له له الملک و له الحمد و هو على کل شي قدير وويلې د هغه چا په شان اجر او ثواب به ورته ورکړى شي چا چې د اسماعيل عليه السلام د اولاد نه څلور تنه غلامان ازاد کړې وي .(بخاري او مسلم)

## په ژبه اساني او الله تعالى ته ګرانې خبرې

۹۶- له ابي هريره ﷺ نه روايت دى چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي دوه کلمې دي چې په ژبه اساني دي او د ميزان په تله کې درندې دي الله تعالىٰ ته زياتې ګرانې دي او هغه کلمې دادي :

سُبْحَانَ اللهِ الْعَظِيْمِ، سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ سُوْرَةٌ (بُخاري او مسلم)

## هغه ذکر چې په ويلو يې انسان د قيامت په ورځ د زياتو نيکيو سره راځي

۹۷- له ابي هريره ﷺ نه روايت دى چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چا چې سل ځله سهار او ماښام سبحان الله وبحمده وويل نو د قيامت په ورځ به تولو خلکو نه د نيکو عملونو سره راغلى وي پرته له هغه چا چې دده په شان عمل يې کړى وي او يا يې زيات توالى ترې کړى وي(مسلم )

## غوره ذکر

۹۸- له ابي هريره ﷺ نه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي په کومه ورځ چې زه ((سُبْحَانَ اللهِ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ، ولاإِلَٰهَ إِلا الله، واللهُ أَكْبَرُ)) ووايم داماته له هرهغه شي څخه غوره دی چې لمر پرې راختلی وي (مسلم)

## هغه کليمې چې الله تعالي يې ملايکو او انسانانو ته خوښوي.

۱۰۱- ابي ذر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې : په خبرو کې الله ته ګرانې خبرې سبحان الله وبحمده ويل دي په يو روايت کې راغلي دي چې رسول الله نه پوښتنه وشوه چې کومې خبرې غوره خبرې دي نو هغه ﷺ وويل هغه خبرې چې الله تعالى خپلو ملائيکو اوبنده ګانو ته غوره کړي دي دادې چې (سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ)(مسلم)

## غوره ذکر او غوره دعا

۱۰۲- له جابر بن عبد الله ﷺ نه روايت دی ،دی وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل چې هغه وويل غوره ذکر(لاإِلَٰهَ إِلاَّ اللهُ) دی او غوره دعا (الْحَمْدُ لِلّٰهِ) ده (ترمذي)

## الحمد لله ، سبحان الله ، الله اكبر ويل په نيكيو امر ، له بديو منع ، او خپلې بې بې سره كوروالى كول صدقه ده

۱۰۳- ابو ذر رضي الله عنه وايي چې د رسول الله ﷺ د يارانو نه څه خلكو وويل : اى د الله رسوله ! شتمن خلك اجرونو او ثوابونو سره لوړو درجو ته ورسيدل هغوى لمونځ كوي لكه څنګه چې مونږ لمونځ كوو ،روژې نيسي لكه څنګه چې مونږ روژې نيسو هغوى په زياتو مالونو سره صدقه وركوى ، رسول الله ﷺ ورته وويل ايا تاسو ته د صدقې كولو اسباب ندي برابر؟ هر سبحان الله ويل صدقه ده هر الله اكبر ويل صدقه ده هر الحمد لله ويل صدقه ده هره لا اله الا الله صدقه ده په نېكيو باندې امر كول صدقه د بديو منع كول صدقه ده او خپلې بې بې سره كوروالى صدقه ده ،يارانو وويل: د الله تعالى رسوله ! يو كس به زمونږ نه د كوروالي نه مزه هم اخلي او دده لپاره به پكې ثواب هم وي رسول الله ﷺ وويل: ماته خبر راكړئ كه څېرې (شرمګاه) په حرام ځاى كې استعمال كړاى شي (زناوكړئ)نوايا ګناه پكې شته كه نه ؟ نوپه همدې توګه په حلال محل كې جماع وكړاى شي نو ثواب پكې شته (مسلم )

## هغه ذکر چې په ويلو يې د انسان د بدن درې سوه شپيته بندونه د دوزخ له اوره ساتل کيږي

۱۰۴- له عايشې ﷺ نه روايت دی چې بېشکه رسول الله ﷺ وويل الله تعالی هر انسان د درې سوه شپېته بندونو لرونکی پيدا کړی دی چاچې د الله تعالی لويې بيان کړه او دايې وويل چې نشته لايق د عبادت مګر يو الله دی د هغه حمد ثنايې وويل د هغه نه يې ښښنه وغوښته د لارې نه يې تيږه لرې کړه ،اغزی يې لرې کړ ،هډوکې يې لرې کړ ،په نېکيو يې امر وکړ او له بديو نه يې منع وکړه نو دغه سړي خپل درې سوه شپيته بندونه ددوزخ له اور نه وساتل همدا راز دغه سړی په شپه کې پداسې حال داخل شو چې ځان يې ددوزخ له اور نه وساته (مسلم)

## هغه کلمه چې په ويلو کې سيال نلري او ګناهونه له منځه وړي

۱۰۵- ام هانه ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي لا اله الا الله داسې کلمه ده چې هيڅ عمل ورنه په ثواب کې وړاندې والی نشي کولای او هيڅ قسم ګناه نه پرېږدي بلکه له منځه يې وړي (ابن ماجه)

## هغه کليمې چې الله تعالی پرې خوشحاليږي

۱۰۶- انس به مالک ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي الله تعالی د هغه بنده نه راضي کيږي څوک چې د خوراک شی

وخوري او د ښنبلو شی وڅکي پس د الله تعالی حمد او ثنا ووايي (الحمدلله)ووايي (مسلم)

## هغه ذکر چې الله تعالی پرې بنده ته په جنت کې ونې کري

۱۰۸- له ابي هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ پداسې حال کې وربانديې تيريده چې ابي هريره رضي الله عنه د څه شي نهالګي کرل نو رسول الله ﷺ راته وويل: ابي هريره څه شی کرې؟ ما ورته وويل نيالګي. رسول الله ﷺ راته ويل: ايا تاته له دې نه بهتر نيالګی کرل ونه ښايم! سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلهِ؛ وَلاإِلَهَ إِلا الله، والله أَكْبَرُ وايه دهر يوه په بدله کې به درته الله تعالی په جنت کې يوه ونه وکري (ابن ماجه)

## هغه کليمې چې په ويلو يې ګناهونه د ونې د پاڼو په څېر تويږي

۱۰۹- ابي درداء رضي الله عنه وايي چې ماته رسول الله ﷺ وويل(( سُبْحَانَ اللهِ والْحَمْدُ لِلهِ، وَلا إِلَهَ إِلااللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ )) ضرور وايه ځکه چې ددې ويل ګناهونو تويوي لکه ونه چې خپلې پاڼې رژوي(ابن ماجه)

## هغه ذکر چې د الله تعالی لوېې پکې بيان شوي

۱۱۰- له نعمان بن بشير رضي الله عنه نه روايت دی ،دی وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي:بېشکه هغه تسبيحات چې تاسې پکې د الله

تعـالی لـوېږ پیـانوی (سـبحان الله لا الـه الا الله والحمـد لله) د الله تعـالی لـه عـرش راتـاوېږي اوداسـې اوازونـه کـوي لکـه د شـاتو د مچیو په شېر پس د خپل ویونکي یادونه کوي ایا له تاسې نـه یـو تن دا نه خوښوي چې دده یادونه وکړي او (په بل روایت کې) د تـل لپاره یې یادونه وکړي (ابن ماجه)

## هغه ذکـر چـې رسـول الله ﷺ همیـشه د ویلو ټینګار کړی

۱۱۱-عبدالله ځوی د بسر رضي الله عنه وایي چې یوه سړي وویـل: اې د الله تعالی رسـوله ، د اسـلام احکـام را بانـدې زیـا ت شـول یوداسـې عمل راته وښایه چې زه یې په ټینګه سـرته ورسـوم. رسـول الله ﷺ ور ته وویل چې همېشه دې خپلـه ژبـه دالله تعـالی پـه ذکـر بانـدې لمده ساته (ابن ماجه او ترمذي)

## د ذکر کوونکو څخه ملایکي راچاپېرې وي

۱۱۲ -ابو هریره رضي الله عنه او ابو سعید خدري رضي الله عنه د رسـول الله ﷺ پـه حضور کې حاضر شول رسول الله ﷺ وویل هېڅ یو قوم به داسې نه وي چې هغـوی د الله تعـالی ذکـر کـوي مګـر ملایکـې بـه تـرې راچاپېرې شي، د الله تعالی په رحمتونو کې به پټ شي ددوی پـه زړونو به اطمینان نازل شي او الله تعالی به یې په هغه ټولګې کې کـوم چې الله تعـالی تـه نژدې دي یـاد کـړي یعنـې د ملایکـو پـه ټولګي کې (مسلم)

## څلور غوره ذکرونه

۱۱۳-جویریه ﷺ وايي چې د سهار د لمانځه د ادا کولو په وخت کې او یا د سهار د لمانځه د ادا کولو نه وروسته د خپل لمانځه په ځای کې ناسته وم چې رسول الله ﷺ راغی رسول الله ﷺ د څاښت د لمونځ د ادا کولو نه وروسته بیا راغی او زه په خپل ځای ناسته وم نو رسول الله ﷺ راته وويل چې ته لا تر اوسه په هماغه حالت کې ناسته یې ما. وويل هو:رسول الله ﷺ وويل بېشکه ما وروسته له هغې چې له تا نه ولاړم څلور کلمې درې ځله وويلې که ستا له عمل سره وزن شي نو وزن به یې ورسره برابر شي هغه څلور کلمې دا دي: (سُبحانَ اللهِ عَدَدَ خَلْقِهِ، سُبحانَ اللهِ رِضَا نَفْسِهِ، سُبحانَ اللهِ زِنَةَ عَرْشِهِ، سُبحانَ اللهِ مِدَادَ كَلِمَاتِهِ) (مسلم)

## په ثواب کې زیاتې او په ژبه اسانې کلیمې

۱۱۴- له سعد بن ابي وقاص ﷺ نه روایت دی ، وايي: چې زه د رسول الله ﷺ سره یوځای د یوې ښځې کورته ننوتم چې مخې ته یې د خرماوو زړي یا ګټکی پرتې وې چې تسبیحات یې ورباندې ویلې نو رسول الله ﷺ ورته وويل زه تا ته داسې څه درونه ښایم چې تا ته یې لدېنه ویل اسانه وي او ثواب یې لدې زیات وي رسول الله ﷺ ورته وويل : سُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي السَّمَاءِ، وَ سُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي الأَرْضِ، وَ سُبْحَانَ الله عَدَدَ مَا بَيْنَ ذٰلِكَ، وَسُبْحَانَ الله

عَدَدَ مَا هُوَ خَالِقٌ، واللهُ أَكْبَرُ؛ مِثْلَ ذَلِكَ ددې په شان ووايې؛ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ؛ مِثْلَ ذَلِكَ ددې په شان ووايې؛ وَلا حَوْلَ وَلا قُوَّةَ إِلا بِاللهِ؛ مِثْلَ ذَلِكَ ددې په شان ووايې" (ابوداود او ترمذي)

## په ثواب کې د څلور زره تسبیحاتو څخه زیاته کلیمه

۱۱۵- صفیه ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ زما کوټې ته راننووت پداسې حال کې چې زما مخې ته څلور زره زړې پراته وو چې ما پرې تسبیحات ویل نو رسول الله ﷺ وویل تا په دې ټولو تسبیحات وویل بیا ئې راته وویل: ایا تاته له دې نه زیات د اجر او ثواب عمل درونه ښایم ما ورته وویل وښایه نو رسول الله ﷺ وویل ووایه: سُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ خَلْقِهِ "(ترمذي)

## د شپې او ورځې د ذکر څخه په ثواب کې زیاتې کلیمې

۱۱۶-له ابی امامه الباهلي ﷺ نه روایت دی، دی وایي چې رسول الله ﷺ مې له څنګه تېریده او ما خپلې شونډې خوځولې نو رسول الله ﷺ راته وویل ای اباامامه! دا ته څه وائي؟ ما ورته وویل خپل رب یادوم رسول الله ﷺ راته وویل: ایا زه تا په داسې عمل خبر نکړم چې هغه تاته د شپې او ورځې د ذکر نه زیات ثواب ولري

هاغه عمل دا دی چې ته ووايې: سُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ، وَ سُبْحَانَ اللهِ مِلْءَ مَا خَلَقَ؛ وَسُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا فِي الأَرْضِ وَالسَّمَاءِ، سُبْحَانَ اللهِ مِلْءَ مَا فِي الأَرْضِ وَ السَّمَاءِ، وَسُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا أَحصَى كِتَابُهُ، وَسَبْحَانَ اللهِ مِلْءَ مَا فِي الأَرْضِ وَالسَّمَاءِ، وَسُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا أَحْصَى كِتَابُهُ، وَسُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ كُلِّ شَيْءٍ، و سُبْحَانَ الله مِلْءَ كُلِّ شَيْءٍ، او ته ووايې الحمد لله ددې په شان او لا اله الا الله ددې په شان و الله اکبر ددې په شان (رواه الامام الاحمد في المسند والنسائي في عمل اليوم و والليله)

## هغه کلمه چې په ويلو يې په عمل نامه کې څلويښت زره نيکۍ ليکل کيږي

۱۱۷- تميم رادي ﷺ له رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې بېشکه رسول الله ﷺ فرمايلي دي څوک چې لس کرته (أَشْهَدُ أَنْ لاإِلَهَ إِلا اللهُ وَحْدَهُ لا شَرِيْكَ لَهُ إِلَهَ وَاحِداً أَحَداً صَمَداً، لَمْ يَتَّخِذْ صَاحِبَةً وَلا وَلَداً، وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُواً أَحَدٌ ) ووايې نو الله تعالى به دده په عمل نامه کې څلويښت زره نېکۍ وليکي (ترمذي)

## هغه ذکر چې په ویلو یې یو میلیون نیکۍ لیکل کېږي یو میلیون بدۍ لرې کېږي او یو میلیون درجې لوړېږي

۱۱۸- له عمر بن الخطاب ﷠ نه روایت دی چې بېشکه رسول الله ﷺ فرمایلي دي څوک چې بازار ته د ننوتلو په وخت کې دا کلمې ووايي : لاإِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ لا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ، وَلَهُ الْحَمْدُ، يُحْيِي وَيُمِيتُ، وَهُوَ حَيٌّ لا يَمُوتُ، بِيَدِهِ الْخَيْرُ، وَهُوَ على كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، الله تعالى به ورته په عملنامه کې یو میلیون نېکۍ ولیکي او یو میلیون بدۍ به ورنه لیرې کړي او یومیلیون درجې به یې لوړې کړي (ترمذي)

## د مجلس د ګناهونو د بخل کېدو دعا

۱۱۹- له ابي هریره ﷠ نه روایت دی، څوک چې په داسې مجلس کې کیني چې په هغه مجلس کې بې ګټې خبرې زیاتې شي پس دغه کس مخکې لدې چې له دې مجلس نه ولاړ شي دا کلمې ووايي چې سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ؛ وَبِحَمْدِكَ أَشْهَدُ أَنْ لا إِلٰهَ إِلاَّ أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ، مګر دهغوخبرو اوګناهونوبښنه به ورته وشي چې په دې مجلس کې، ترې صادرې شوي دي (ترمذي)

## جنت ته د داخلیدو استغفار

۱۲۰- له شداد بن اوس ﷛ نه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې تر ټولو غوره استغفار دادی چې ته داسې ووایې: (اللَّهُمَّ أَنْتَ رَبِّي لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ خَلَقْتَنِي وأنا عَبْدُكَ وأنا على عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ ما اسْتَطَعْتُ أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ أَبُوْءُ لَكَ بِنِعْمَتِكَ عليَّ وأَبُوْءُ بِذَنْبِي فاغْفِرْ لِي إِنَّهُ لا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ) که کوم بنده پوره استغفار د ماښام له پلوه ووایي او د شپې له مخې وفات شو نو الله تعالی به یې جنت ته داخل کړي او که د ورځې په شروع کې یې ووایي او پدې ورځ وفات شي نو الله تعالی به یې جنت ته داخل کړي (بُخاري)

## د مجلس څخه د پورته کیدو ذکر

۱۲۱- له عبد الله بن عمر ﷛ نه روایت دی بېشکه مونږ به شمېرل چې رسول الله ﷺ له یوه مجلس نه د پورته کیدو نه وړاندې سل ځله وویل چې ("رَبِّ اغْفِرْ لِي وَتُبْ عَلَيَّ إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الغفور") (ابوداود ،نسائي او ابن ماجه)

## زيات استغفار ويونکي ته زيری

۱۲۲- عبد الله بن بسر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي خوشحالي دهغه چا لپاره ده چې په عملنامه کې يې زيات استغفار وموندل شي(ابن ماجه او نسائي)

## د هر غم څخه د خلاصي ذکر

۱۲۳- له عبد الله بن عباس ﷺ نه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چا چې په خپل ځان استغفار ويل لازم کړل نو الله تعالی به له هر غم نه د خلاصي لار ورته پيدا کړي او د هرې تنګسې نه به د وتلو لار ورته ولټوي او نه داسې لورې به روزي ورکړي چې دی به ګمان هم نکوي (ابو داود او ابن ماجه)

## د ښښنې زيری

۱۲۴-له ابوبکرﷺ نه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي په ګناه باندې اصرار کوونکی (دوام کوونکی) نه ګڼل کېږي هغه څوک چې د الله تعالی نه ښښنه غواړي که څه هم په ورځ کې اويا ځله ګناه کوي (ابوداود او ترمذي)

## د زړه زنګ په توبه لرې کېږي

۱۲۵-له اغرالمزني ﷺ نه روایت دی وایي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې خامخا ځما په زړه هم زنګ راځي او زه د الله تعالی نه په ورځ کې سل ځله بښنه غواړم (مسلم)

## څوک چې د سنګر څخه تښتیدلی وي دا دعا دې ووایې

۱۲۶- د رسول الله ﷺ ازاد شوی غلام زید ﷺ نه روایت دی چې ده له نبي ﷺ نه واوریدل څوک چې دا کلمې ووایي چې (اسْتَغْفِرُ اللهَ الَّذِیْ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَیُّ الْقَیُّوْمُ وَأَتُوْبُ إِلَیْهِ) بښنه به ورته وشي که څه هم د جهاد له سنګر نه تښتېدلی وي (ابوداود، ترمذي)

## د ګناه کولو څخه وروسته دوه رکعته لمونځ

۱۲۷- ابوبکر صدیق ﷺ وایي چې ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي چې ویل یې: هیڅ بنده به داسې نه وي چې یوه ګناه وکړي بیا په صحیح دول اودس وکړي بیا پورته شي دوه رکعته لمونځ وکړي بیا د الله تعالی نه بښنه وغواړي مګر الله تعالی به ورته بښنه وکړي بیا رسول الله ﷺ دغه ایات ولوست ((وَالَّذِيْنَ إِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوْا أَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللهَ فَاسْتَغْفَرُوْا لِذُنُوْبِهِمْ وَمَنْ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ إِلَّا

اللّٰهُ وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَىٰ مَا فَعَلُوا وَهُمْ يَعْلَمُونَ)) ۱۳۵ (ابوداود ،نسائي او ترمذي)

## د جنت د خزانو څخه يوه خزانه

۱۲۹-ابي موسیٰ عبد الله بن قيس ﷺ وايي چې مونږ د نبي کريم ﷺ سره په يو سفر کې وو نو رسول الله ﷺ وفرمايل: ای عبد الله بن قيسه ايا د جنت د خزانو نه يوه خزانه درته و نه ښايم ما وويل ولی نه يا رسول الله ﷺ راته ويې ښايه نو رسول الله ﷺ وويل ووايه(لا حول ولا قوة الا با الله)(بُخاري او مسلم)

## د جنت خزانه

۱۳۱- حازم بن حرملہ ﷛ وايي چي زه درسول الله ﷺ له څنګه تيريدم رسول ﷺ را ته وويل ای حازمه [لا حوله ولاقوة الا با لله] زيات وايه ځکه دا د جنت له خزانو نه دی ((ابن ماجه))

## پر بنده د الله تعالی له لورې لس ځله سلام

۱۳۳- ابي طلحه ﷛ وايي بېشکه رسول الله ﷺ يوه ورځ راغی او د خوښی نښې يې په مخ کې ښکاريدلې مونږ ورته وويل مونږ ستاسو په مخ کې د خوشحالی نښې ګورو رسول الله ﷺ وويل بېشکه جبرايل عليه السلام ماته راغلی وه او ويې ويل ای محمده ﷺ بېشکه ستا رب وايي ايا تا دا خبره نه خوشحالوي چې يو بنده

پر تا یو ځل درود نه وایي مګر زه پرې لس رحمتونه نازل کړم یو بنده پر تا یو ځل سلام نه وایي مګر زه پرې لس ځله سلام ووایم (نسائي)

## لس ګناهونه ښنل کېدل او لس درجې لوړیدل

۱۳۴- انس بن مالک ﷛ وایي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي څوک چې په ما یو ځل درود ووایي الله تعالی به پرې لس رحمتونه نازل کړي لس ګناهونه به ورته وبښل شي او لس درجې به یې لوړې شي (نسایي)

## د ځنکدن په وخت کې کلمه وریادول

۱۳۵- ابي سعید او ابي هریره ﷛ دواړو فرمایلي دي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي مرګ ته نژدې کسانو ته مود لا اله الله د ور یادولو کوښښ کوئ (مسلم)

یادونه: څوک چې د ځنکدن په حالت کې وي تاسو د هغوی په مخکې خپله په زوره کلمه وایي هغه ته داسې مه وایي چې کلمه ووایه هسې نه چې هغه ووایي چې نه یې وایم ځکه مرګ ته نژدې کس زیات په تکلیف کې وي.

## د قران لوستونکی به د عزتمندو ملایکو سره یو ځای وي

۵۳۲- عایشه ﷞ وایي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي هغه څوک چې په قران پوهېږي د قیامت په ورځ به د نېکو او عزتمندو ملائیکو سره یو ځای وي او هغه څوک چې قران لولي او د قران په لوستلو کې ورته تکلیف وي او په ژبه کې یې درونوالی وي نو دداسې کس لپاره دوه اجره دي (مسلم)

## قرآن لوستونکی به د الله تعالی په رحمت کې پټ وي

۵۳۳- ابي هريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي هيڅ يو قوم د الله تعالی د کورونو څخه په کوم کور کې نه يو ځای کيږي چې د الله تعالی کتاب ولولي او په خپلو کې يې يو بل ته وښايي مګر الله تعالی به پر دوی باندې داډ او اطمينان نازل کړي الله تعالی به يې په خپل رحمت کې پټ کړي داسې خلکو ته د الله تعالی ملايکې راتوليږي او په مجلس کې يې شرکت کوي او الله تعالی يې په هغه ډله کې يادوي کومه ډله چې الله تعالی ته نژدې ډله وي چې هغه د مقربو ملائيکو ډله ده .(مسلم)

## د قران د دريو اياتونو د لوستلو ثواب

۵۳۴- ابي هريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ ويلي دي ايا په تاسو کې کوم کس دا خوښوي چې کور ته راشي او په کور کې دري غټې حاملې او غوښنې اوښې بيامومي صحابه وايي مونږ وويل ولې نه ای د الله تعالی رسوله مونږ هر يو دا خوښوو رسول الله ﷺ وويل چې دري ايتونه چې له تاسو څخه يې کوم کس پخپل لمانځه کې ولولي ددې لپاره ددرې غټو حاملو غوښنو اوښانو څخه غوره دي (مسلم)

## د قران لوستونکي د الله تعالی غوره بنده ګان دي

۵۳۵-انس بن مالک ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ ويلي دي بېشکه الله تعالی دوه ډوله خاص خلک لري صحابوو پوښتنه وکړه ای د الله تعالی رسوله هغه کوم خلک دي رسول الله ﷺ وويل اهل القران همدوی اهل الله

دي او همدوی د الله تعالی خاص او ځانګړي خلک دي ددې حدیث روایت امام احمد ابن ماجه او نسائي په فضایل قران کې کړی دی.

## لس چنده نیکی

۵۳۶-عبد الله بن مسعود ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چا چې د قرانکریم یو حرف ولوست نو د هغه لپاره یوه نېکي ده یوه نېکي لس چنده ده زه دانه وایم چې (الم) یو توری دی بلکه (الف) یو توری (ل) بل توری او (م) بل توری دی(ترمذي)

## الله تعالی د قران لوستونکي ته د عزت جامې(کالې)ور اغوندي

۵۳۷-ابي هریره ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي د قران کریم قاري به د قیامت په ورځ راوستل شي او ورته وبه ویل شي ای الله ده ته د عزت جامې ورکړه نو د عزت تاج به ور په سر کړی شي بیا به وویل شي یا الله نور څه هم ورته زیات کړه نو د عزت جامې به ور واغستل شي بیا به وویل شي یا الله له ده څخه راضي شه نو الله تعالی به ورڅخه راضي او خوشحاله شي بیا به د قرانکریم قاري ته وویل شي قران کریم لوله او پورته خېژه او د هر ایت د لوستلو په بدل کې به یې یوه نېکي زیاتېږي(ترمذي)

## الله تعالی ته د نژدې والې وسیله

۵۳۸- ابي امامه ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي هغه څه چې الله تعالی یو بنده ته پرې ډېره په رحمت سره توجه کوي هغه دا دې چې

يو بنده دوه ركعته لمونځ وكړي او دنيکۍ اثرات اوثوابونه ديوه بنده پرسر ترهغې راتويږي چې تركومه هغه په لمانځه کې وي اوالله تعالى ته چې بندګان په قرانكريم سره څومره اندازه نيږدې كيږي په بله كومه وسيله هغه هومره نشي نيږدې كيدلای (ترمذي)

## د قران د قاري مقام

عبد الله بن عمر رضي الله عنه درسول الله ﷺ څخه روايت كوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي په جنت کې به د قرانكريم قاري ته وويل شي چې قرانكريم لوله او پورته خېژه او داسې په ترتيل(په تجويدسره) يې وايه لکه څنګه چې تا په دنيا کې قرانكريم په ترتيل سره لوسته د قرانكريم د اخري ايت په لوستلو سره به خپل مقام په جنت کې ووينې (بو داود ، نسائي او ترمذي)

## دقاري والدينو ته د قيامت په ورځ داسې رڼا چې ددنيا لمر به تت كړي

سهل بن معاذ جهيني رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت كوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي څوک چې قرانكريم ولولي او عمل پرې وكړي نو د قيامت په ورځ به يې مور او پلار ته داسې د عزت تاج ورپرسر كړای شي چې د هغې رڼا به ددنيا د لمر درڼا نه زياته ښايسته وي كه ستاسو په كورونو کې داسې رڼاوې وي نو ستاسې د هغه چا په نسبت څه ګمان كوئ چې قرانكريم يې پخپله لوستی وي او عمل يې پرې كړي وي يعنې

څوک دم کوونکی شته ځکه چې د اوبو په خوا کې یوکس مار او یا لړم چیلچې دی نودرسول الله ﷺ د یارانو له ډلې څخه یو کس له ده سره ولاړه او مار چیچلی یې په سورت فاتحه باندې دم کړ نو دغه صحابي خپلو ملګرو ته په داسې حال کې راغی چې یو پسه ورسره وه کله چې یې ملګرو د هغه سره پسه ولیده نو دایې بد وګڼل او هغه ته یې وویل چې تا د الله په کتاب باندې پیسې اخیستې دي تر دې چې مدینې ته ورسیدل نو هغه اصحابو رسول الله ﷺ ته وویل چې ده د الله تعالی په کتاب باندې پیسې اخیستي دي رسول الله ﷺ وویل بېشکه د الله تعالی کتاب ددې زیات حقدار دی چې تاسو پرې بدله او اجر واخلئ(بخاري)

## د قران په دم اجوره اخیستل

۵۴۷.ابي سعید خدري رضي الله عنه وایي چې د رسول الله ﷺ ځینې ملګري په لار روان وو چې د عربو د کلو څخه یوه کلي ته ورسېدل اصحابو د هغوی د ملمستیا ارزو لرله مګر د کلي خلکو د هغوی د میلمستیا څخه انکار وکړ د کلي خلکو څخه د رسول الله ﷺ اصحابو ته یو کس وویل چې په تاسو کې څوک دمونکی شته ځکه چې زمونږ د کلي مشر څه شي چیچلی او په مصیبت اخته دی نو د رسول الله ﷺ د اصحابو څخه یوه کس ورته وویل هو په مونږ کې دم کوونکي شته دغه اصحابي ولاړه مار چیچلی یې په سورت فاتحه باندې دم کړ نو د کلي سردار روغ او جوړ شو نو د کلي مشر ورته په شکرانه کې یو پسه ورکړ مګر هغه قبول نکړ او ویې ویل چې زه په دې اړه د رسول الله ﷺ ته یادونه کوم نو دغه صحابي

رسول الله ﷺ ته راغی او دمار چیچلی واقعه یې ورته بیان کړه او ویې
ویل ای د الله تعالی رسوله قسم د الله په ذات چې ما د کلي مشر د سورت
فاتحې پرته پر بل کوم شي ندی دم کړی ایا زه د هغوی شکرانه قبوله کړم
او کنه رسول الله ﷺ تبسم وکړ تاته څه پته وه چې سورت فاتحه باندې
دمول کیږي بیا رسول الله ﷺ وویل ورشئ او پسه ورڅخه تر لاسه کړئ او
ماته هم پکې برخه راکړئ.

## هغه کور چې شیطان نشي ورتلای

۵۴۹-ابي هريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ ویلي دي د خپلو کورنو څخه قبرونه مه جوړوئ په کوم کور کې چې سورت بقره لوستل کیږي هغې کورته شیطان نه ننوزي(مسلم)

## د قرانکریم د ټولو ایاتونو سردار ایت

۴۵۰-ابي هريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ ویلي دي چې هر شی (یوه لوړه برخه لري د قرانکریم لوړه برخه سوره البقره ده پدې سورت کې یو ایت دی چې د قرانکریم سردار دی او هغه ایت ایة الکرسي دی (ترمذي)

## سهار او بیګاه د الله تعالی په ساتنه کې

۵۵۱-ابي هريرهﷺوايي چې رسول الله ﷺ ویلي دي چا چې ایت الکرسي او حم المؤمن تر واليه المصير پورې د سهار له لورې ولوست نو دغه کس به تر شپې پورې به د الله تعالی په ساتنه کې وي او چاچې د

شپې له لورې ولوست نو تر سهار پورې د الله تعالى په ساتنه کې وي (ترمذي)

## د شپې له لورې حفاظت كوونكي ايتونه

۵۵۲-ابي مسعود البدري ﷺ د رسول الله ﷺ څخه نقل كوي دى وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چاچې د سورت بقر اخري ايتونه د شپې له لورې ولوستل نو ددې ايتونو لوستل ده لپاره كفايت كوي (بخاري او مسلم)

## د جادوګرو د شر څخه د بچ كيدو علاج

۵۵۳-ابي امامه الباهلي ﷺ وايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چې هغه فرمايلي دي قرانكريم لولئ ځكه چې قرانكريم به د قيامت په ورځ د خپلو اصحابو او ملګرو لپاره شفاعت كوي زهر اوين لولئ (زهر او ين) د سورت بقرې اوسورت عمران څخه عبارت دي بېشكه دغه دواړه سورتونه د قيامت په ورځ ددوو وريځو دغوندې يو په څير او يا به دغه دواړه سورتونه د دوو ډلو بيرو مرغانو په څېر د خپلو لوستونكو څخه طوافونه كوي او ببننه به ورته غواړي سورت بقره ولولئ ځكه چې ددې په لوستلو كې بركت دى او په نه لوستلو كې يې پښيماني ده او ددې د لوستلو په بركت هيڅوك په چاباندې جادو كولو توان نلري معاويه بن سلام وايې ماته دا خبره را رسيدلي دى چې بطله ساحرانو ته وايي (مسلم)

## د دجال د فتنې څخه د بچ كيدو علاج

۵۵۶-ابي درداء رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چا چې د سورت کهف اولني درې ايتونه زده کړل نو دغه کس به ددجال د فتنې څخه خوندي پاتي شي (ترمذي)

## د سورت يس د ويلو ثواب(لس کرته قرانکريم لوستل)

۵۵۷-انس رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ ويلي دي د هر څه لپاره زړه وي د قرانکريم زړه سورت ياسين دی څوک چې يو وار سورت ياسين ولولي نو دا داسې دی لکه چې څوک لس کرته قرانکريم ووايي (ترمذي)

## ددخان د سورت ويونکي ته اويا زره ملايکي ښښنه غواړي

۵۵۹-ابي هريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي څوک چې د شپې له لورې حم الدخان سورت ولولي نو تر سهاره پورې اويا زره ملايکې د دغه کس لپاره ښښنه غواړي (ترمذي)

## د جمعې په شپه د سورت دخان د لوستلو ثواب

۵۶۰-ابي هريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ ويلي دي څوک چې د جُمعې په شپه حم الدخان سورت ولولي نو الله تعالی به ورته ښښنه وکړي (ترمذي)

## د شهادت د مرگ هومره ثواب

۵۶۱-معقل به يسار رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي څوک چې د سهار په وخت کې درې ځله اعوذ با الله السميع العليم من الشيطان الرجيم او بيا ورپسې د حشر د سورت وروستي درې ايتونه ولولي نو الله

تعالی به دده لپاره اویا زره ملایکې مقررې کړي چې په دغه کس به درودونه وایي تر دې چې شپه شي که دغه سړی پدې ورځ مړ شو نو شهید مړ شو او څوک یې چې د شپې له لورې ولولي نو هم دغه مقام لري (ترمذي)

## د قبر د عذاب څخه د خلاصون صورت

۵۶۲-ابن عباس ﷜ وایي چې د رسول الله ﷺ د اصحابو څخه یوه کس په قبر خیمه ووهله مګر هغه پدې پوه نه وه چې لاندې قبر دی پس ناڅاپه متوجه شو چې هغه د انسان قبر دی اود قبر والا سورت ملک تر اخره پورې ولوسته نو دغه صحابي راغی او رسول الله ﷺ ته یې وویل ای د الله تعالی رسوله ما په بې خبرۍ کې د یو انسان په قبر خیمه وهلې وه زه هیڅ پوه نه وم چې دا د انسان قبر دی ناڅاپه زما د خیمې لاندې د انسان اواز راغی او سورت ملک یې تر هغې ویلو چې ختم یې کړ رسول الله ﷺ ورته وویل چې سورت ملک د الله د عذاب منځه نیسي او سورت ملک انسان د قبر د عذاب څخه خلاصوي (ترمذي)

## څوک چې سورت زلزال ولولي لکه نیم قران یې چې لوستی وي

۵۶۴-انس بن مالک ﷜ وایي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي څوک چې اذا زلزلت الارض سورت ولولي نو دغه کس نیم قران ولوسته او

څوک چې قل یا یها الکافرون سورت ولولي دا داسې دی لکه د قران کریم
څلورمه برخه یې چې وویله (ترمذي)

## د شرک څخه د خلاصون لاره

۵۶۶-نوفل اشجعي رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته ورغی او ورته ویې ویل چې
ای د الله تعالی رسوله ماته داسې څه وښایه چې زه یې د ویده کېدو پر
مهال کې وایم رسول الله ﷺ ورته وویل قل یاایها الکافرون سورت وایه
ځکه چې پدې سورت کې د شرک د خلاصون لاره ښوول شوي ده (ترمذي
، ابوداود او نسائي)

## د ویده کېدو څخه تر ویښېدو پورې په امن کېدل

۵۶۷-شداد بن اوس رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي هیڅ
یو مسلمان به داسې نه وي چې د ویده کېدو پر وخت د الله تعالی د کتاب
څخه یو سورت ولولي مګر الله تعالی به ددې کس د ساتنې لپاره یوه
ملکه مقرره کړي نو دغه کس ته به هیڅ ضرري شی ضرر ونه رسوي تردې
چې دی له خوب څخه رابېدارشي. (ترمذي)

## سوره اخلاص لوستل د قرانکریم ددریمې حصې هومره ثواب

۵۷۰-ابي هریره رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ زمونږ طرف ته راغی او ویې
ویل چې زه اوس تاسو ته د قرانکریم ددریمې برخې پورې تلاوت کوم

پس رسول الله ﷺ سورت اخلاص تر اخره پورې ولوست اوبيا زمونږ څخه ولاړه.(مسلم)

## سورت اخلاص په هکله څلورم حديث

۵۷۱-ابي درداء رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي ايا په تاسو کې څوک ددې توان لري چې د شپې له لورې د قرانکريم ددريمې برخې تلاوت وکړي اصحابو ووېل څرنګه به د قرانکريم دريمه برخه ولولو رسول الله ﷺ ووېل قل هوالله احد يعنې سورت اخلاص تر اخره پورې لوستل د قرانکريم ددريمې برخې د لوستلو سره برابر دی.

## د سورت اخلاص مينه مسلمان جنت ته بيايي

۵۷۲-انس بن مالک رضي الله عنه وايي چې يو کس چې د اصحابو امام وه د ه به خامخا په لمانځه کې سورت اخلاص د بل سورت پر ځای لوسته رسول الله ﷺ دغه امام ته ووېل چې تا ولې په لمانځه کې سورت اخلاص لوستل په ځان لازم کړي دي هغه ورته ووېل زه ددې سورت سره مينه لرم رسول الله ﷺ ورته ووېل چې ددې سورت مينه به تا جنت ته ننباسي.(ترمذي)

## سورت اخلاص د لوستونکي سره الله تعالي مينه کوي.

۵۷۳-عايشه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ يو کس د غازيانو ديوې دلې سره د امام په صفت ولېږه دغه امام به خپل قرات په قل هو الله احد سره

پای ته رساوه کله چې دغازیانو دغه ډلګی د جهاد څخه بیرته راغله نو رسول الله ﷺ ته یې ددې یادونه وکړه رسول الله ﷺ هغوی ته وویل تاسو د خپل امام څخه پوښتنه وکړئ چې ولې یې په هر رکعت کې سورت اخلاص لوسته اصحابو د هغه څخه پوښتنه وکړه هغه امام وویل ما ځکه دا سورت بیا بیا لوسته چې دا سورت د رحمن ذات صفت دی زه دا خوښومه چې سورت اخلاص همېشه ولولم هغوی رسول الله ﷺ په دې خبره خبر کړ رسول الله ﷺ وویل هغه ته خبر ورکړئ چې الله تعالی له تا سره مینه لري (بخاري او مسلم)

## په ورځ کې دوه کرته سورت اخلاص لوستل ګناهونه له منځه وړي

۵۷۴-انس بن مالک ﷺ د رسول الله ﷺ څخه روایت کوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي ثوک چې په ورځ کې دوه سوه کرته سورت اخلاص ووایي الله تعالی به یې د پنځو سوو کلونو ګناهونه ورته وبښي پرته د قرض څخه چې په ده باندې وي او بیا رسول الله ﷺ وویل ثوک چې خپل د ویده کیدو ځای ته د ویده کیدو په نیت ورشي نو په ښي طرف دې څملي بیا دې سل کرته سورت اخلاص ووایي کله چې د قیامت ورځ شي نو الله تعالی به ورته ووایي ای زما بنده له ښي لورې څخه جنت ته ننوزه (ترمذي)

### د معوذتين (قل اعوذ برب الفلق ـــ قل اعوذ برب الناس) ثواب

۵۷۵-عبد الله بن خبيب انصاري ﷺ وايي چې مونږ په يوه باراني او توره تياره شپه کې راووتلو او رسول الله ﷺ مو لټولو ترڅو مونږ ته لمونځ راکړي رسول الله ﷺ مو ومونده رسول الله ﷺ ماته وويل ووايه ما هيڅ ونه ويل بيا رسول الله ﷺ راته وويل ووايه ما هيڅ ونه ويل بيا رسول الله ﷺ راته وويل ووايه ما هيڅ ونه ويل ما ورته وويل څه ووايم اى د الله تعالى رسوله! رسول الله ﷺ راته وويل قل هوالله احد او د قرانكريم دوه اخرني سورتونه د سهار او ماښام په مهال درې کرته وايه د هر څه په نسبت همدا ستا لپاره کفايت کوي (ابو داود، ترمذي او نسائي)

## بيا هم ددوو اخرنيو سورتونو ثواب

۵۷۶-عقبه بن عامر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وويل ته نه گورې چې نن شپه پر ما باندې داسې ايتونه نازل شويدي چې هيڅ سارى يې نه ليدل کيږي هغه سورتونه قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس دي (مسلم شريف)

## تر ټولو غوره غوښتنه

۵۷۷-عقبه بن عامر ﷺ وايي چې زه د رسول الله ﷺ سره روان وم رسول الله ﷺ لږ وخت چپ شو بيا يې وويل اى عقبه ووايه ما ورته وويل څه ووايم اى د الله تعالى رسوله بيا يې وويل ووايه ما ورته وويل څه ووايم اى د الله تعالى رسوله! رسول الله ﷺ راته وويل قل اعوذ برب الفلق ووايه

ما دغه سورت تر پایه پورې ولوسته بیا رسول الله ﷺ راته وویل ووایه ما ورته وویل څه ووایم ای د الله تعالی رسوله! رسول الله ﷺ راته وویل قل اعوذ برب الناس ووایه ما دغه سورت تر پایه پورې ولوست بیا رسول الله ﷺ وویل هیڅ سوال کوونکي داسې سوال ندی کړی او هیڅ پنا غوښتونکي داسې پنا نده غوښتي یعنې دغه غوښتنه د ټولو غوښتنو غوره غوښتنه ده او د ټولو پنا غوښتلو څخه غوره پنا غوښتنه ده. (نسائي)

## د اور څخه د خلاصون کلیمه

۷۲۶-مسلم بن حارث الانصاري رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ راته په ورو وویل کله چې ته د ماښام د لمانځه څخه فارغ شوي نو مخکې د خبرو کولو څخه اوه ځله دا دعا ووایه (الهم اجرنی من النار) کله چې تا دا دعا وویله او پدې شپه کې مړ شوي نو ستا په عمل نامه کې به د اور څخه خلاصی ولیکل شي او کله چې ته د سهار د لمونځ ادا کړي نو اوه ځله پورته دعا ووایه که چیرې ته پدې ورځ مړ شوي نو په عملنامه کې به درته د اور څخه خلاصون ولیکل شي (ابو داود)

## جنت ته د تللو دعا

۷۲۷-بریده الاسلمي رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه روایت کوي دی وایي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي څوک چې د سهار او ماښام په مهال دا دعا ووایي چې: اللَّهُمَّ أَنْتَ رَبِّي لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ خَلَقْتَنِي وَأَنَا عَبْدُكَ وَأَنَا عَلَى

عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ ما اسْتَطَعْتُ أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ أَبُوْءُ لَكَ بِنِعْمَتِكَ
وأَبُوْءُ بِذَنْبِي فاغْفِرْ لِي فإِنَّهُ لا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلاَّ أَنْتَ) که دغه کس پدې شپه
یا ورځ مړ شي نو جنت ته به ولاړ شي(ابو داود او نسائي)

## هغه دعا چې ملایکې یې د ثوابونو د لیکلو څخه عاجزې دي

۷۲۸- عبد الله بن عمر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ دوی ته حدیث بیان کړ چې د الله تعالی دبنده ګانو څخه یوه بنده داسې دعا وکړه چې (یا رَبِّ لَكَ الْحَمْدُ كَمَا يَنْبَغِي لِجَلالِ وَجْهِكَ وَلِعَظِيمِ سُلْطَانِكَ) نو په دوو ملایکو چې په انسانانو مقرري دي ددې کلمو د ثوابونو لیکل درانده تمام شول چې څومره ثوابونه ورته په عملنامه کې ولیکي نو دغه ملایکې اسمان ته پورته شوې او الله تعالی ته یې وویل ای الله بېشکه ستا یوه بنده داسې کلمې ویلې، مونږ نه پوهېږو چې په عملنامه کې ورته څومره ثوابونه ولیکو الله تعالی به وواییې پداسې حال کې چې الله تعالی پرې ښه پوه وي چې زما بنده څه ویلي دي نو دغه دواړه ملایکې ورته وواییې بېشکه ستا بنده دغه کلمې ویلي دي چې((یا رَبِّ لَكَ الْحَمْدُ كَمَا يَنْبَغِي لِجَلالِ وَجْهِكَ وَلِعَظِيمِ سُلْطَانِكَ)) نو الله تعالی دغه دواړو ملایکو ته وواییې چې تاسو دا کلمې هماغسې ولیکئ څنګه چې زما بنده ویلي دي کله چې د

قيامت په ورځ زما سره مخامخ شي زه ددې کلمو اجرونه اوثوابونه ورته پخپله ورکوم(ابن ماجه)

## د اذان او اقامت تر منځ دعا قبليږي

۷۲۹- انس بن مالک ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي هغه دعا چې د اذان او اقامت تر منځه وشي الله تعالى يې نه ردوي راوي وايي چې، ما وويل اى د الله رسوله! مونږ څنګه دعا وکړو رسول الله ﷺ وويل د الله تعالى څخه ددنيا او اخرت عافيت اوساتنه وغواړئ (ترمذي)

## تر ټولو غوره غوښتنه

۷۳۰- ابي هريره ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ ويلي دي لدې څخه بله غوره دعا چې يوه بنده يې د الله تعالى څخه وغواړي بله نشته چې هغه دعا دغه ده (اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْمُعَافَاةَ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ) ژباړه يا الله زه له تا څخه ددنيا او اخرت ساتنه اوعافيت غواړم(ابن ماجه)

## په دعاګانو کې غوره دعا

۷۳۲-انس بن مالک ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ ته يو سړی راغی او ورته يې وويل چې اى د الله تعالى رسوله! په دعاګانو کې کومه دعا غوره ده رسول الله ﷺ وويل د خپل رب څخه د دنيا او اخرت عافيت غواړه په دويمه ورځ بيا دا سړی راغی او ويې ويل اى د الله تعالى رسوله! په دعاګانو کې کومه دعا غوره ده رسول الله ﷺ ورته وويل د خپل رب

څخه ددنيا او اخرت عافيت غواړه په دريمه ورځ ورته بيا راغی او ورته يې ووېل ای د الله تعالی رسوله! په دعا ګانو کې کومه دعا غوره ده رسول الله ﷺ ورته وويل چې که عافيت او ساتنه درکړی شوي نو ته بريالی او سرلوړی شوي (ترمذي)

## هغه دعا چې د بنده ټول ګناهونه پرې ښنل کيږي

۷۳۴-عبد الله بن عمرو رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ ويلي دي چې د ځمکې په مخ به داسې مسلمان نه وي هغه وايي چې (لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللهُ، وَاللهُ أَكْبَرُ، وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ) مګر الله تعالی به يې ټول ګناهونه وبښي که څه هم ددرياب د ځګ په اندازه وي (ترمذي او نسايي)

## شل نيکی ليکل کيدل او شل بدی ليري کيدل

۷۳۵-ابي سعيد خدري رضي الله عنه او ابي هريره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي الله تعالی د بندګانو په خبرو کې څلور خبرې ډيرې خوښې دي (سبحان الله) (الحمد لله) (و لا اله الا الله) (والله اکبر) چا چې يو ځل سبحان الله ووېلې نو شل نېکۍ به ورته په عملنامه کې وليکل شي او شل بدۍ به ورڅخه لېرې شي چاچې يو ځل الله اکبر ووېلي نو شل نېکۍ به ورته عملنامه کې وليکل شي او شل بدۍ به ورڅخه لېرې کړای شي او چا چې لا اله الا الله ووېلی نو شل نېکۍ به

ورته په عملنامه کې ولیکل شي او شل بدۍ به ورځخه لیرې کړای شي چا چې د خپل ځان له لورې ورسره الحمدلله رب العالمین وویلي نو په عملنامه کې به ورته دېرش نېکۍ ولیکل شي او دېرش بدۍ به ورځخه لیرې کړی شي (مسند احمد)

## هغه دعا چې په ویلو یې بنده ته په جنت کې ونه کرل کیږي

۷۳۶-جابر بن عبد الله رضي الله عنه وايي چې بېشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چا چې دا دعا وویله چې سبحان الله و بحمده نو ددې بنده لپاره به په جنت کې د کجورو یوه ونه وکرل شي (ترمذي او نسايي)

## په عملنامه کې د زرو نیکیو لیکل کیدل

۷۳۷-ابن عمر رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي سبحان الله وبحمده سل ځلې ووايي ځکه چې چا یو کرت سبحان الله وبحمده وویلي نو په عملنامه کې به یې ورته لس نېکۍ ولیکل شي او چاچې لس ځلې وویلي نو په عملنامه کې به یې سل نېکۍ ولیکل شي او چا چې سل ځلې وویلي نو په عملنامه کې به یې زر نېکۍ ولیکل شي او چا چې لدې زیات وویلی نو الله تعالی به هم ورته زیات اجرونه ورکړي او چا چې د الله ځخه بښنه وغوښته نو الله تعالی به ورته بښنه وکړي (ترمذي )نسايي په ورځنیو او شپنیو اعمالو کې لیکلی دی .

## هغه دعا چې د بنده سوال پرې نه رد کیږي

۷۳۸-بريده الاسلمي ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ د يو سړي څخه داسې دعا واوريده هغه ويل(اللّٰهمّ إنّي أسألك بأنّي أشهد أنّك اللّٰهُ لا إلٰه إلّا أنت الأحدُ الصّمدُ الّذي لم يلد ولم يولد ولم يكن له كفوا أحد) راوي وايي چې رسول الله ﷺ وويل چې دې سړي د الله تعالى څخه په هغه اسم اعظم سوال کړی دی چې په دې نوم د چا سوال او دعا نه ردکيږي (ابو داود ،ترمذي ،نسايي)

## د ماهي په ګېډه کې د يونس عليه السلام دعا

۷۳۹-سعد بن ابي وقاص ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي د ذالنون يعنې يونس دعا چې د ماهي په ګيډه کې يې کړې وه چې هغه(لآ إلٰه إلّآ أنت سُبحانك إنّي كنتُ من الظّالمين . سورت الانبيا ۸۷ ايت) دا داسې دعا ده چې هيڅ يو مسلمان پرې د الله تعالى څخه څه ندي غوښتي مګر الله تعالى يې دعا قبوله کړيده (ترمذي او نسايي)

## په اسم اعظم د الله تعالى څخه غوښتنه

۷۴۰-انس بن مالک ﷺ وايي چې زه د رسول الله ﷺ سره ناست وم يو سړي لمونځ کولو بيا يې دا دعا ولوستله (اللّٰهمّ إنّي أسألك بأنّ لك الحمدُ لا إلٰه إلّآ أنت المنّانُ بديعُ السّماواتِ والأرضِ، يا ذا الجلالِ والإكرامِ يا حيُّ يا قيُّومِ)رسول الله ﷺ وويل دې سړي د الله تعالى

ځخه د اسم اعظم غوښتنه وکړه کله چې يدې نوم ځوک د الله تعالى ځخه ځه وغواړي نو الله تعالى يې غوښتنه نه ردوي او که ځوک پدې نوم دعا وکړي نو دعا يې قبليږي(ابن ماجه ابوداود)

(ابن ماجه) يکې زيات کړى دى چې لا اله الا انت وحدک لا شريک لک المنان يا حي يا قيوم يې ندى ذکر کړى

## ځوک چې درې کرته د الله تعالى ځخه جنت وغواړي

۷۴۱-انس بن مالک رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي ځوک چې د الله تعالى ځخه درې ځلې جنت وغواړي نو جنت الله تعالى ته سوال وکړي چې يا الله دغه کس جنت ته داخل کړه او ځوک چې د اور ځخه درې ځلې پنا وغواړي نو دوزخ الله تعالى ته سوال وکړي چې يا الله دغه کس ته ددوزخ ځخه امان ورکړې (ابن ماجه ،نسايي)

## د غم ځپلي انسان د ليدلو په وخت دعا

۷۴۲-عبد الله بن عمر رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي ځوک چې کوم غم ځپلى انسان وګوري او دا دعا ووايي چې ((الحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذى عافانِي مِمَّا ابْتَلاكَ بِهِ وَفَضَّلَنِي على كَثِيرٍ مِمَّنْ خَلَقَ تَفْضِيلاً)) تر ځو چې ژوندى وي نو الله تعالى به يې ددې بلا ځخه خوندي وساتي هرچېرې چې وي ترمذي ورسره ماعاش من راى صاحب البلاء لفظونه ياد کړي دي (ترمذي د ابن عمر رضي الله عنه ځخه روايت کړى)

۷۴۳-ابي هريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي څوک چې کوم غم ځپلی وګوري او دا دعا ووايي چې (: الحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِی عافانِی مِمَّا ابْتلاكَ بِهِ وَفَضَّلَنِی علَیٰ كَثِیرٍ مِمَّنْ خَلَقَ تَفْضِیلاً لَمْ یُصِبْهُ ذٰلكَ البَلاءُ) نو دغه مرض اوبلا به ورته هيڅکله ونه رسيږي (ترمذي)

ترمذي او ابو جعفر محمد بن علي څخه روايت کړی دی ويلی يې دي من اذ رای صاحب بلاء يتعوذ يقول ذالک في نفسه ولا يسمع صاحب البلاء) څوک چې کوم غم ځپلی ويني د الله تعالی څخه دې په زړه کې پنا وغواړي او کوښښ دې وکړي چې غم ځپلي يې ترې وانه وري.

## په خوب کې د وريدونکي لپاره دعا

۷۴۴-عبد الله بن عمرو رضي الله عنه وايي چې بېشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي کله چې په تاسو کې کوم کس په خوب کې وويريږي نو دا دعا دې ووايي چې (: أَعُوذُ بِكَلِماتِ اللهِ التَّامَّةِ مِن غَضَبِهِ وَعِقَابِهِ، وَشَرِّ عِبادِهِ، وَمِنْ هَمَزَاتِ الشَّیَاطِینِ، وأَنْ یَحْضُرُونِ، فَإِنَّها لَنْ تَضُرَّهُ) نو چا چې دا دعا ولوسته نو هيڅ کوم شی به ورته ضرر ونه شي رسولای عبد الله بن عمر به خپلو غټو اولادونو ته ددې دعا ښوونه کوله او د وړو اولادونو لپاره به يې دغه دعا په يو کاغذ کې وليکله او په غاړه کې به يې ورته ځوړندوله (ابوداود او ترمذي)

## خالد بن ولید رسول الله صلي الله علیه وسلم په خوب کې د ویریدو شکایت کوي

۷۴۵-روایت شوی چې خالد بن ولید ﵁ رسول الله ﷺ ته شکایت وکړ او ورته یې وویل ای د الله تعالی رسوله ماته د شپې د ویرې له امله خوب نه راځي رسول الله ﷺ ورته وویل کله چې ته د ویده کیدو لپاره د ملاستې ځای ته ورځې نو دا دعا وایه«اَللّٰهُمَّ رَبَّ السَّمٰوَاتِ السَّبْعِ وَمَا اَظَلَّتْ وَرَبَّ الأَرضِینَ وَمَا اَقَلَّتْ وَرَبَّ الشَّیاطِینِ وَمَا اَضَلَّتْ کُنْ لی جاراً مِنْ شرِ خَلْقِكَ كُلِّهِمْ جَمِيعاً أَنْ يَفْرُطَ عَلیَّ أَحَدٌ مِنْهُمْ أَو أَنْ يَبْغِی عَلیَّ عَزَّ جارُكَ وَجَلَّ ثَنَاؤُكَ وَلاإِلٰهَ غَيْرُكَ وَلا إِلٰهَ إِلاَّ أَنْتَ".»(ترمذي)

## د مسلمان په غیاب کې هغه ته دعا کول

۷۴۶-ابي درداء﵁ وایي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي هیڅ یو مسلمان به داسې نه وي چې د یوه مسلمان ورور په غیاب کې هغه ته دعا وکړي مګر ملایکې ورته په جواب کې وایي چې الله تعالی دي ستاسو په حق کې همداسې دعا قبوله کړي (مسلم)

## له قران کریم څخه دعاګانې

### د زیان کارانو په ډله کې د نه شمیر کیدو او بچ کیدو دعا

١ - رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنفُسَنَا وَإِن لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ [الأعراف ٢٣]

ژباړه: اې زمونږ ربه مونږ په خپلو ځانونو تيرى کړى دى که ته راته ببښنه ونه کړې او راباندې مهربان نه شې نو مونږ به خامخا له زيان کارانو څخه شو.

### د الله تعالى څخه د ببښنې دعا

٢- ﴿ ... ... رَبِّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ أَنْ أَسْأَلَكَ مَا لَيْسَ لِي بِهِ عِلْمٌ وَإِلَّا تَغْفِرْ لِي وَتَرْحَمْنِي أَكُن مِّنَ الْخَاسِرِينَ ﴾{هود ٤٧}

ژباړه: اې زما ربه بیشکه زه پناه غواړم په تاسره له دې څخه چې له تا څخه هغه څه وغواړم چې زه پرې نه پوهیږم، که ته ماته ببښنه ونه کړې او راباندې مهربان نه شې نو زه به له زیان کارانو څخه شم.

## مور او پلار ته دعا

۳- رَبِّ اغْفِرْ لِي وَلِوَالِدَيَّ وَلِمَن دَخَلَ بَيْتِيَ مُؤْمِنًا وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ (۳)

ژباړه: اې زما ربه ما وبښه زما مور او پلار وبښه ، او هغه وبښه چې زما کور ته ننوتونکي دي . ټول نارينه مومنان او ټولې ښځې مومناني.

## د توبې د قبليدو دعا

۴- رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ... وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنتَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ (٤)

ژباړه: اې زمونږ ربه زمونږ هلې ځلې قبولې کړه. بيشکه همدا ته اوريدونکی او پوه يې قبوله کړه توبه زمونږ بيشکه چې ته ښه توبه قبلوونکی او مهربان يې.

۵- رَبِّ اجْعَلْنِي مُقِيمَ الصَّلَاةِ وَمِن ذُرِّيَّتِي رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَاءِ (۱)

ژباړه: اې زما ربه ! وګرځوه ما لمونځ ودروونکی. اوله اولادي زما ، اې ربه زمونږ او قبوله کړه دُعا زما.

(۱) د نوح سوره ۲۸ آيت ۲۹ سپاره ۷۱ سوره.
(۲) د ابراهيم سوره ۴۰ آيت ۱۳ سپاره ۱۴ سوره.

## مومنانو ته دعا

٦ ـ رَبَّنَا اغْفِرْ لِي وَلِوَالِدَيَّ وَلِلْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ يَقُومُ الْحِسَابُ (٢)

ژباړه: اې ربه زمونږه ! ماته ببښنه وکړه او زما مور او پلاز او ټولو مؤمنانو ته په هغه ورځ مغفرت وفرمايه چې حساب او كتاب پکي کولای شي.

## د نيكانو سره د يو ځای كيدو دعا

٧ـ رَبِّ هَبْ لِي حُكْماً وَأَلْحِقْنِي بِالصَّالِحِينَ {٨٣} وَاجْعَل لِّي لِسَانَ صِدْقٍ فِي الْآخِرِينَ {٨٤} وَاجْعَلْنِي مِن وَرَثَةِ جَنَّةِ النَّعِيمِ [٨٥] وَلَا تُخْزِنِي يَوْمَ يُبْعَثُونَ }الشعراء{٨٧} (٣)

ژباړه: اې زما ربه ! ماته علم او پوهه را په برخه كړه، او له نيكانو سره مي يوځای كړه، او په راتلونكونسلونو كي مي په ښه نوم سره ياد كړه. او له نعمتونو څخه د ډك جنت له وارثانو څخه مي وګرځوه. او په هغه ورځ مي مه رسواكوه چې ټول خلك را پورته كولای شي.

(٢) د ابراهيم سوره ٤١ سوره ١٣ سپاره . ٤ سوره.
(٣) د الشعراء سوره ٨٣-٨٤-٨٥-٨٧ آياتونه ١٩ سپاره ٢٦ ، سوره.

## د صالح اولاد غوښتلو دعا

٨- رَبِّ هَبْ لِي مِنَ الصَّالِحِينَ (٤)

ژباړه: اې ربه! ماته ځوی راکړه چې وي له صالحانو څخه .

## په الله تعالی د توکل کولو دعا

٩- رَبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا وَإِلَيْكَ أَنَبْنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ ١

ژباړه: اې زمونږ ربه ! خاص پر تاباندې موتوکل کړی دی او مونږ خاص تاته رجوع کړې ده، او خاص تاته بیرته ګرځیدل د ټولو دي په آخرت کې د پاره د جزا .

## د کافرانو د برلاسۍ څخه د خلاصون دعا

١٠- رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِلَّذِينَ كَفَرُوا وَاغْفِرْ لَنَا رَبَّنَا إِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ٢

ژباړه: اې زمونږ ربه ! د کافرانو له پاره مو ازمویښت مه ګرځوه (( په برلاستیا د هغوی )) اې زمونږ ربه ! مونږ ته ښښنه وکړه، بیشکه ته په هر څه برلاسی او د حکمت والا یې.

## د نعمت د شکر ادا کولو دعا

۱۱ — رَبِّ اَوْزِعْنِی اَنْ اَشْكُرَ نِعْمَتَكَ الَّتِی اَنْعَمْتَ عَلَیَّ وَعَلٰی وَالِدَیَّ وَاَنْ
اَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضٰهُ وَاَدْخِلْنِی بِرَحْمَتِكَ فِی رَحْمَتِكَ فِی عِبَادِكَ
الصّٰلِحِیْنَ ۳

ای زما ربه! ماته ښوونه وکړه (( توفیق راکړه )) چې زه ستا د هغو لورینو مننه (( شکر، پرځای کړم چې پر ما او زما پرمور او پلار دي کړي دي او ماته وس راکړه چې ښه کړنه (( عمل )) وکړم چې ته يې خوښوې، او د خپلې مهرباني له مخې مي په خپلو نيکو بنده ګانو کې داخل کړه (( اوشميره )).

## د نيک او پاک اولاد د غوښتلو دعا

۱۲ — رَبِّ هَبْ لِیْ مِنْ لَّدُنْكَ ذُرِّیَّةً طَیِّبَةً اِنَّكَ سَمِیْعُ الدُّعَاءِ (۱)

ژباړه: اې زما ربه ! ماته ستا له پلوه نيك او پاك اولاد راوبښه ، بې شکه ته د دُعاء او غوښتنې ښه اوريدونکی يې.

## له يواځې توب څخه د خلاصون دعا

۱۳ — رَبِّ لَا تَذَرْنِیْ فَرْدًا وَّاَنْتَ خَیْرُ الْوٰرِثِیْنَ ۲

ژباړه: اې زما ربه ! ما يوازې مه پرېږده ، او ته ډېر غوره وارث د وارثانو يې.

۱ د آل عمران سوره ۳۸۲ آيت ۳ سپاره ۳ سوره.

## د يونس عليه السلام دعا

۱۴ - لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۝ (۱)

ژباړه: (( اى ربه ! )) پرته له تا څخه بل هيڅ ، حق معبود نشته، پاکي ده تالره، بې شکه زه له تيري کوونکو څخه يم.

## د کار د اسانۍ او د سينې د پراخۍ دعا

۱۵ – رَبِّ اشْرَحْ لِيْ صَدْرِيْ ۝ وَيَسِّرْ لِيْ أَمْرِيْ ۝ وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِّنْ لِّسَانِيْ ۝

يَفْقَهُوْا قَوْلِيْ ۝ (۲)

ژباړه: اې زما ربه ! زما سينه پراخه کړه او کار مي راته اسان کړه، او زما د ژبې غوټه وسپړه، څو هغوى زما په خبره پوه شي.

## په ځان د تيري کوونکي دعا

۱۶ – رَبِّ إِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ فَاغْفِرْ لِيْ ۝ (۳)

ژباړه: اې زما ربه ما پرځان تيرى وکړ نو ماته ببښنه وکړه.

## د شهادت ورکونکو څخه د شميرل کيدو دعا

۱۷ - رَبَّنَا آمَنَّا بِمَا أَنْزَلْتَ وَاتَّبَعْنَا الرَّسُوْلَ فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ ۝ (٤)

(۱) د انبياء سوره ۸۷ آيت، ۱۷ سپاره، ۲۱ سوره.
(۲) د طه سوره ۲۵ - ۲٦ - ۲۷ - ۲۸، ۱٦ سپاره، ۲۰ سوره.
(۳) د قصص سوره، ۱٦ آيت ۲۰ سپاره ۲۸ سوره.

ژباړه: اې زمونږ ربه ! مونږ په هغه څه ایمان راوړی دی چې تا نازل کړی دی او ستا د رسول متابعت مو کړی دی نو د شهادت ورکوونکو په کتار کې مو ولیکه .

## د کافرانو څخه د خلاصون دعا

۱۸ - رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلْقَوْمِ الظَّالِمِيْنَ ۝ وَنَجِّنَا بِرَحْمَتِكَ مِنَ الْقَوْمِ الْكَافِرِيْنَ ۝ (٥)

ژباړه: اې زمونږ ربه ! مونږ د ظالمانو له پاره ازمیښت مه ګرځوه او په خپل رحمت سره مونږ ته له کافرانو څخه نجات راکړه .

## د ګناهونو د ښښتې دعا

۱۹ - رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَإِسْرَافَنَا فِيْ أَمْرِنَا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِيْنَ ۝ (١)

ژباړه: اې زمونږ ربه ! مونږ ته زمونږ ګناهونه او په کارکې له شرعي پولو څخه تیریدنه مونږ ته وبښه ، زمونږ قدمونه ټینګ کړه او پر کافرانو باندې مو برلاسې کړه.

(٥) د آل عمران سوره ۵۳ آیت ۳ سپاره ۳ سوره.

(١) د یونس سوره ۸۵-۸۶ آیاتونه ۱۱ سپاره ۱۰ سوره.

## د كار د اسانۍ دعا

۲۰ - رَبَّنَا آتِنَا مِنْ لَدُنْكَ رَحْمَةً وَهَيِّئْ لَنَا مِنْ أَمْرِنَا رَشَدًا ۞ ۱

ژباړه: اې زمونږ ربه ! راكړه مونږ ته ستا له پلوه رحمت او زمونږ كار سم او برابر كړه.

## د علم د زياتوالي دعا

۲۱ - رَبِّ زِدْنِي عِلْمًا ۞ ۲

ژباړه: اې زما ربه! علم او پوهه مې راته زياته كړه.

## د شيطان د وسوسو څخه د خلاصون دعا

۲۲ - رَبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ ۞ وَأَعُوذُ بِكَ رَبِّ أَن يَحْضُرُونِ ۞ ۳

ژباړه: اې زما ربه! زه له تا څخه د شيطانانو له وسوسو او تونګونو څخه پناه غواړم، او په تا سره اې زما ربه پناه غواړم له دې څخه چې شيطانان ماته راشي.

## د الله تعالى د مهربانۍ دعا

۲۳ - رَبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَأَنْتَ خَيْرُ الرَّاحِمِينَ ۞ ( ۱

ژباړه: اې زما ربه ! ما وبښه او راباندې مهربانه شه او ته له ګردو مهربانانو څخه غوره مهربان يې.

(۱) د المومنون سوره ۱۱۸ آيت ۱۸ سپاره ۲۳ سوره.

## د پاتې او تل پاتې نړۍ د ښېګړې دعا

۲۴- رَبَّنَآ اٰتِنَا فِی الدُّنْیَا حَسَنَةً وَّفِی الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ ○ (۲

ژباړه: ای زمونږ ربه! راکړه مونږ ته په دنیا کې ښېګړه، او په آخرت کې هم او د اور له عذاب مو وژغوره .

## د الله تعالی د حکم د منلو دعا

۲۵- سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَاِلَیْكَ الْمَصِیْرُ ○ (۳

ژباړه: واورېده مونږ د الله حکم او مننه (( اطاعت )) مو وکړ او زمونږ ربه مونږ ستا ښښنه غواړو او یوازې تاته درتګ دي .

## په کافرانو د بریالیتوب دعا

۲۶- رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ اِنْ نَّسِیْنَآ اَوْ اَخْطَاْنَا رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَیْنَآ اِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهٗ عَلَی الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِنَا رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ وَاعْفُ عَنَّا وَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا اَنْتَ مَوْلٰنَا فَانْصُرْنَا عَلَی الْقَوْمِ الْكٰفِرِیْنَ ۲۸۶○ (۱

ژباړه: اې زمونږ ربه ! مونږ په هغه څه مه نیسه چې مونږ په هېره کړي وي او یا په خطائي سره مو کړي دي. اې زمونږ ربه ! پر مونږ

(۲ د البقره سوره ۲۰۱ آیت ۲ سپاره ۲ سوره.
(۳ د البقره سوره ۲۸۵ آیت ۳ سپاره ۲ سوره.
(۱ د البقره سوره ۲۸۶ آیت ۳ سپاره ۲ سوره.

باندې داسې درونډ پيټی مه باره وه، لکه چې له مونږ څخه په وړاندې خلکو تا بارکړی و، اې زمونږ ربه ! پر مونږ باندې داسې بار مه ږده چې مونږ يې ځواك نه لرو. مونږ ته معافي وکړه، مونږ ته ښښنه وکړه، په مونږ رحم وکړه، ته زمونږ واکدار يې نو پر کافرانو مو بريمن کړه.

## د زړه د نه کږيدو دعا

۲۷- رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِنْ لَدُنْكَ رَحْمَةً إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ۝(۱)

ژباړه: اې زمونږ ربه ! زمونږ زړونه مه کږوه وروسته له دې چې تا راته هدايت وکړ مونږ ته ، وبښه له پاره زمونږ رحمت له پلوه ستا څخه بيشکه چې ته ډير ښونکی يې.

## د دوزخ د اور څخه د پنا غوښتلو دعا

۲۸- رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هَذَا بَاطِلاً سُبْحَانَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ۝ رَبَّنَا إِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ أَخْزَيْتَهُ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنْصَارٍ۝ رَبَّنَا إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُنَادِي لِلْإِيمَانِ أَنْ آمِنُوا بِرَبِّكُمْ فَآمَنَّا رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْ

(۱) د آل عمران سوره ۸ آيت ۳ سپاره ۳ سوره.

عَنَّا سَيِّئَاتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الأَبْرَارِ ۝ رَبَّنَا وَآتِنَا مَا وَعَدتَّنَا عَلَى رُسُلِكَ وَلاَ تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّكَ لاَ تُخْلِفُ الْمِيعَادَ ۝ (۲)

ژباړه: اې زمونږ ربه ! نه دي پيدا كړي تا دا مخلوق چټي او بې حكمته، پاكي ده تا لره له ګردو عيبونو، نو وساته مونږ له عذابه د اور (( د دوزخ څخه ))!.

اې زمونږ ربه! بيشكه ته هر څوك چې داخل كړې اور د دوزخ ته نو په تحقيق رسوا كړ تا هغه لره، او نشته ظالمانو ته هيڅ مرسته كوونكى.

اې زمونږ ربه ! مونږ د يو بلونكي غږ واوريده چې ايمان ته يې بلنه كوله، داسې چې ايمان راوړئ په رب خپل نو مونږ ايمان راوړو. اې زمونږ ربه! ببښنه وكړه مونږ ته زمونږ د ګناهونو او ورژوه له مونږ څخه اې زمونږ ربه ! بدي زمونږ او راكړه مونږ ته هغه چې وعده كړي ده تا له مونږ سره د رسولانو په ژبه او د قيامت په ورځ مونږ مه رسوا كوه، بيشكه ته له خپلې وعدې څخه مخالفت نه كوې.

## د الله تعالى څخه د رحم غوښتلو دعا

۲۹- رَبَّنَا آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا وَأَنْتَ خَيْرُ الرَّاحِمِينَ ۝ (۱)

(۲) د آل عمران سورت ۱۹۱-۱۹۲-۱۹۳-۱۹۴، ۴ سپاره ۳ سوره.

(۱) د المومنون سوره ۱۰۹ ايت ۱۸ نسپاره ۲۳ سوره.

ژباړه: اې زمونږ ربه ! مونږ ایمان راوړی دی نو مونږ ته ببښنه وکړه او راباندې مهربانه شه ته له ګردو مهرباني کوونکو څخه غوره مهربان یې.

## د دوزخ د عذاب څخه د بچ کیدو دعا

۳۰- رَبَّنَا اصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ إِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا ۝ إِنَّهَا سَاءَتْ مُسْتَقَرًّا وَّمُقَامًا ۝ (۲)

ژباړه: اې زمونږ ربه! له مونږ څخه د جهنم عذاب واړوه، بیشکه چې د هغه عذاب ټینګ تړلی وي. بې له شکه چې هغه د ورتګ او پاتې کیدلو له پاره خورا ناوړه ځای دي.

## د نیکې ښځې د غوښتلو دعا

۳۱- رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ وَّاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا ۝ ۱

ژباړه: اې زمونږ ربه! مونږ ته سترګې سړوونکې ښځې او اولادونه او ببښه او د متقیانو امامان مو وګرځوه.

## د الله تعالی د رحم غوښتلو دعا

۳۲- رَبِّ أَوْزِعْنِي أَنْ أَشْكُرَ نِعْمَتَكَ الَّتِي أَنْعَمْتَ عَلَيَّ وَعَلَى وَالِدَيَّ وَأَنْ أَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضَاهُ وَأَصْلِحْ لِي فِي ذُرِّيَّتِي إِنِّي تُبْتُ إِلَيْكَ وَإِنِّي مِنَ الْمُسْلِمِينَ ۝ (۲)

(۱) د الفرقان سوره ٦٥-٦٦ آیاتونه، ۱۹ سپاره، ۲۵ سوره.
د اللفرقان سوره ۷۴ -آیت ۱۹ سپاره ۲۵ سوره
(۱) د احقاف سوره، ۱۵ آیت ۲٦ سپاره ۴٦ سوره.

ژباړه: اى ربه زما! الهام وكړه (( وس راكړه )) ما ته چې ستاد نعمتونو مننه (( شكر )) وكړم چې تا پر ما باندې او زما په مور او پلار باندې كړي دي او بل د اوس راكړه چې هغه ښې چاري (( نيك كارونه )) وكړم چې ته يې خوښوې او سمونه (( اصلاح )) وكړه زما او صلاحيت كيږده ما ته په اولاد زما كې، بې شكه ما توبه كړي ده تا ته او بې شكه په تحقيق زه له غاړه اېښوونكو څخه يم.

## د كينې او حسد څخه د ځان ساتلو دعا

٣٣- رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِينَ سَبَقُونَا بِالْإِيمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِي قُلُوبِنَا غِلًّا لِّلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا إِنَّكَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ۝[٣]

ژباړه: اى ربه زموږ ښښنه وكړه موږ ته او له پاره د هغو وروڼو زموږ چې له موږ څخه يې وړاندې والى كړي په ايمان راوړلو كې، او مه ګرځوه په زړونو زموږ كې د هغو كسانو له پاره كينه چې ايمان يې راوړي دي. اى ربه زموږ بې شكه ته مهرباني كوونكي رحم والا يې.

## د قيامت په ورځ د رڼا غوښتلو دعا

٣٤- رَبَّنَا أَتْمِمْ لَنَا نُورَنَا وَاغْفِرْ لَنَا إِنَّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۝[٢]

ژباړه: اى زموږ ربه! بشپړه كړه له پاره زموږ رڼا زموږ (( د قيامت په ورځ په صراط پل د تيريدو په مهال )) او ښښنه وكړه

[١] د الحشر سوره، ١٠ آيت ٢٨ سپاره، ٥٩ سوره.

مونږ ته بې شكه په تحقيق ته پر هر شي باندې وسمن (( قادر ))
يې.

## د ګناهونو د ببنني دعا

۳۵- رَبَّنَآ إِنَّنَآ آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ [۱]

ژباړه: اى زمونږ ربه! په تحقيق سره مونږ ايمان راوړي دي نو وببنه زمونږ له پاره ګناهونه زمونږ، او وژغوره مونږ د دوزخ د اور له عذاب څخه.

## د ايمان قوي كيدو دعا

۳۶- رَبَّنَآ آمَنَّا فَاكْتُبْنَا مَعَ الشَّاهِدِينَ [۲] ژباړه: اى زمونږ ربه! مونږ ايمان راوړي دي نو وليكه مونږ له شهادت وبونكو سره (( منونكو)).

## د بتانو د عبادت څخه د بچ كيدو دعا

۳۷- رَبِّ اجْعَلْ هَٰذَا الْبَلَدَ آمِنًا وَاجْنُبْنِي وَبَنِيَّ أَن نَّعْبُدَ الْأَصْنَامَ [۳]

ژباړه: اى ربه زما وګرځوه ته دغه ښار د امن تاتوبى. يعنى مكه او وژغوره ته ما او زما اولاد له دې څخه چې مونږ عبادت وكړو د بوتانو.

## د احتياج د پوره كيدو دعا

۳۸- رَبِّ إِنِّي لِمَآ أَنزَلْتَ إِلَيَّ مِنْ خَيْرٍ فَقِيرٌ [۴]

[۱] د آل عمران سوره، ۱۶ آيت ۳ سپاره، ۳ سوره.
[۲] د المائده سوره، ۸۳ آيت، ۷ سپاره، ۵ سوره.
[۳] د ابراهيم سوره، ۳۵ آيت ۱۳ سپاره، ۱۴ سوره.
[۴] د القصص سوره ۲۴ آيت ۲۰ سپاره ۲۸ سوره.

ژباړه: ای زما ربه! له پاره د هغه څه چې تا نازل کړي دي په لوري زما له ښېګړې څخه زه ورته اړ (( محتاج )) یم.

## په مفسدینو د بریالیتوب دعا

۳۹- رَبِّ انصُرْنِي عَلَى الْقَوْمِ الْمُفْسِدِينَ[1]

ژباړه: ای زما ربه! مرسته وکړه له ما سره پر قوم فساد (( وراني )) کوونکو باندې.

## د ظالمانو د ډلې څخه د خلاصون دعا

۴۰- رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ[2]

ژباړه: ای زمونږ ربه! مه ګرځوه مونږ د ظالمانو له قوم سره.

## په الله تعالی د توکل کولو دعا

۴۱- حَسْبِيَ اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ[3]

ژباړه: بس دي ما لره الله پرته له ده څخه بل هیڅ معبود نشته پرده باندې زما توکل دي او دي (( الله )) د لوي عرش څښتن دي.

## د الله تعالی څخه د سمې لارې د غوښتلو دعا

۴۲- رَبِّي أَن يَهْدِيَنِي سَوَاءَ السَّبِيلِ[4]

[1] د عنکبوت سوره، ۳۰ آیت ۲۰ سپاره ۲۹ سوره.
[2] د اعراف سوره، ۴۷ آیت ۸ سپاره ۷ سوره.
[3] د التوبه سوره ۱۲۹ آیت ۱۱ سپاره، ۱۰ سوره.
[4] د القصص سوره ۲۲ آیت ۲۰ سپاره ۲۸ سوره.

ژباړه: هيله ده چې زما رب به ماته سمه لاره راته اوښايي.

## د ظالم قوم څخه د نجات دعا

۴۳- رَبِّ نَجِّنِي مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ[15]

ژباړه: ای زما ربه! نجات (( خلاصون )) راکړه ماته له قوم د ظالمانو څخه. يعنی د ظالمانو له ظلم څخه مې وژغوره.

[15] د القصص سوره ۲۱ آيت ۲۰ سپاره ۲۸ سوره.

# د لمونځ کولو مکمله طریقه

## نیت

لومړی به نیت وکړې.

## تکبیر تحریمه

له نیت وروسته به غوږونو ته لاسونه پورته کړي او تکبیر تحریمه(الله اکبر) به یو کرت وایې.

الله اکبر – الله لوی دی

له الله اکبر له ویلو وروسته به لاسونه وتړې او ثنا به ولولې.

## ثناء

سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ ، وَبِحَمْدِكَ ، وَتَبَارَكَ اسْمُكَ ، وَتَعَالَى جَدُّكَ ، وَلاَإِلَهَ غَيْرُكَ .

ژباړه : پاکي ده تا لره یا الله سره د ستاینې ستا ، مبارک دی نوم ستا او لوړ دی شان ستا ، د عبادت وړ پرته له تا بل څوک نشته .

**د ثنا له ويلو وروسته به تعوذ او تسميه ولولې**

**تعوذ:** ﴿أَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ﴾

**پناه غواړم په کومک د الله تعالی د شيطان رټل شوي څخه.**

**تسميه:** ﴿بِسْمِ اللهِ الرَّحْمنِ الرَّحِيمِ﴾

**شروع کوم د الله تعالی په نوم چې ښېونکی او مهربان دی.**

**د تعوذ او تسميې له ويلو وروسته به د فاتحې سورت ولولې.**

## د فاتحې سورت

- الْحَمْدُ للّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ٢ الرَّحْمـنِ الرَّحِيمِ ٣ مَـلِكِ يَوْمِ الدِّينِ ٤ إِيَّاكَ نَعْبُدُ وإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ٥ اهدِنَــــا الصِّرَاطَ المُستَقِيمَ ٦ صِرَاطَ الَّذِينَ أَنعَمتَ عَلَيهِمْ غَيرِ المَغضُوبِ عَلَيهِمْ وَلاَ الضَّالِّينَ ٧

((ژباړه: ټولې ستاينې الله لره دي چې پالونکی د عالميانو دی زيات مهربان او رحم والا دی څښتن د ورځې د قيامت دی يوازې تا لره عبادت کوو او يوازې له تا څخه مدد غواړو، موږ ته سمه لار وښايه، لاره د هغو کسانو چې تا پر هغوی احسان کړی نه لار د هغو کسانو چې تا په هغوی قهر کړی او نه لار د هغه کسانو چې لار ورکي (گمراهان) دي

د سوره فاتحې تر لوستلو وروسته به د قرانکریم درې ایتونه ولولې مثلاً د اخلاص سوره.

## سوره اخلاص

قُلۡ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ ١ ٱللَّهُ ٱلصَّمَدُ ٢ لَمۡ يَلِدۡ وَلَمۡ يُولَدۡ ٣ وَلَمۡ يَكُن لَّهُۥ كُفُوًا أَحَدُۢ ٤

ژباړه: (ای محمده)! ووایه چه الله یو دی. (١) هغه بې نیازه دی. (٢) نه څوک زېږوي او نه له چا زېږېدلی دی. (٣) او هیڅ څوک سیال ورلره نشته. (٤)

د درې ایتونو له ویلو وروسته به د الله اکبر په ویلو رکوع ته ښکته شې او په رکوع کې به لاندې کلمات درې کرته ولولې.

## رکوع

(سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمْ) ژباړه: پاکې ده زما رب لره چې لوی دی

د رکوع له کولو وروسته به ودرېږې او قومه به وکړې او یوکرت به لاندې دعا ولولې.

## قومه

(سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ)

ژباړه: (الله تعالی د هغه چا خبره اوري چې د هغه ستاینه کوي اې زمونږ ربه ستاینې تا لره دي)

د قومې له ادا کولو وروسته په سجدې ته ښکته یوه سجده به وکړې او په دغه (لومړۍ) سجده کې به لاندې کلمات درې کرته ولولې.

## سجده

(سُبْحَانَ رَبِّيَ الأَعلىٰ) پاکي ده زما رب لره چې ډیر لوړ.

د یوې سجدې له کولو وروسته به بیرته کېنې او جلسه به وکړې او د جلسې دعا به درې کرته ووایې.

## جلسه

(اللهم اغفرلی) یا الله ما ته بښنه وکړې.

د جلسې له کولو وروسته به دویمې سجدې ته ښکته شي او بیا به لاندې کلمات درې کرته ولولې.

(سُبْحَانَ رَبِّيَ الأَعلىٰ) پاکي ده زما رب لره چې ډیر لوړ.

د دویمې سجدې له کولو وروسته به دویم رکعت ته پورته شي او د اول رکعت په څیر به دویم رکعت هم پوره کړې او له هغې وروسته به لاندې (تشهد ،درود شریف او دعا ولولې.
یادونه که چیرې لمونځ څلور رکعتي وي نو یوائې تشهد به ولولې او د الله اکبر په ویلو به دریم او څلورم رکعت هم د نورو

رکعتونو په څیر تکمیل کړي او له هغې وروسته به تشهد ، درود او دعا ولولي.

**تشهد:**

التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ ، وَالصَّلَوَاتُ ، وَالطَّيِّبَاتُ ، السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ ، وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ ، السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِينَ ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ .

**ژباړه: ټول عبادتونه الله تعالی لره دي ټول لمونځونه او پاکيزګی الله تعالی لره دي سلام دې وي په تا باندې اې پیغمبره او رحمت د الله تعالی دې وي په تا باندې اې پیغمبره او برکتونه د الله دې وي په تا اې پیغمبره اوسلامتیا له ټولو افتونو دې وي په مونږ او په نیکو بندګانو د الله زه شاهدي ورکوم پدې چې بېشکه نشته داسې ذات چې عبادت یې کېږي بې له الله (جل جلا له) څخه اوزه شاهدي وایم چې په رښتیا سره محمد صلی الله علیه وسلم د الله تعالی بنده او رسول دی.**

## درود شريف (١)

اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ ، وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ ، كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ ، وَعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ .

ژباړه : يا الله رحمت ولېږې په محمد صلی الله عليه وسلم باندې او د هغه په ځوځات (اولاده) لکه تا چې رحمت لېږلی وه په ابراهيم عليه اسلام او د هغه په اولاد بېشکه ته لوی ستايلی شوی يې .

## درود شريف (۲)

اللَّهُمَّ بَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ ، وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ ، كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ ، وَعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ .

ژباړه : يا الله برکت ولېږې په محمد صلی الله عليه وسلم باندې او د هغه په ځوځات (اولاده) لکه تا چې برکت لېږلی وه په ابراهيم عليه السلام او د هغه په اولاد بېشکه ته لوی ستايلی شوی يې .

**دعا:**

اللَّهُمَّ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ

ژباړه: اې زمونږ ربه مونږ ته په دنيا کې ښه ژوند راکړې او په اخرت کې ښه ژوند راکړې او د دوزخ له اوره مو وساتې .

د ماښستن په لمانځه کې به په اخري درېيم رکعت کې لاسونه غوږونو ته پورته کړي او الله اکبر له ويلو وروسته به لاندې دعا ولولې.

## دعای قنوت

((اللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْتَعِينُكَ ، وَنَسْتَغْفِرُكَ ، وَنُؤْمِنُ بِكَ ، وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْكَ وَنُثْنِي عَلَيْكَ الْخَيْرَ ، نَشْكُرُكَ وَلَا نَكْفُرُكَ ، وَنَخْلَعُ وَنَتْرُكُ مَنْ يَفْجُرُكَ ، اللّٰهُمَّ إِيَّاكَ نَعْبُدُ ، وَلَكَ نُصَلِّي وَنَسْجُدُ ، وَإِلَيْكَ نَسْعَى وَنَحْفِدُ ، وَنَرْجُو رَحْمَتَكَ ، وَنَخْشَى عَذَابَكَ ؛ إِنَّ عَذَابَكَ بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ .))

ژباړه : یا الله مونږ له تا نه د مرستې غوښتونکي یو، له ، له تا څخه د بښنې غوښتونکي یو ، پرتا ایمان راوړو ، پر تا توکل کوو ، ستا ستاینه کوو ، ستا شکر ادا کوو ، ستا نا شکري نه کوو ، څوک چې ستا ناشکري او نا فرماني وکړي هغه پرېږدو ((هېڅ اړیکې ورسره نه ساتو)) یا الله موږ ستا عبادت کوو او تاته لمونځ کوو، تاته سجده کوو ، ستا په لور در ځغلو ، ستا د حکم منلو تیار یو ، ستا د رحمت لېوال یو او ستا له عذاب څخه وېرېږو . بېشکه ستا عذاب کافرانو ته ور رسېدونکی دی .

## په شريعت کې د جادو علاج:

امام ابن کثير د خپل تفسير په لومړی ټوک ۳۹۳ مخ کې د تفسير قرطبي په حواله د وهب ابن منبه څخه نقل کړی، وهب بن منبه ويلي دی چې د جادو ليري کولو لپاره اکسير او مجربه نخسه داده چې د بيرې اوه پاڼې را واخستل شي، وروسته په اية الکرسي او معوذتينو دم کړای شي يوه ډبره لاندې او بله پرې د پاسه کړای شي او د غه پاڼې بنې وټکول شي او بيا په اوبو کې واچول شي اوبه و خوټکول شي کله چې اوبه سړی شي بيا له دغو اوبو څخه هغه ناروغ ته چې جادو پرې شويدي درې غړپه (ګوټه) وڅښي او په نورو پاتي اوبو باندې ناروغ غسل وکړي، سمدستی به انشاءالله د سحر اثار په بشپړه توګه ورڅخه ولاړ شي، دا درمل د هغه چا لپاره زيات موثر دي چې د کوډو په واسطه دخپلې ښځې څخه بند شوي وي.

امام ابن کثير وائي چې د سحر او کوډو له منځه وړلو لپاره زيات موثر درمل د قران کريم دوه اخرني سورتونه دي چې رسول الله (صلي الله عليه وسلم) فرمايلي دي چې ددې دواړو په څېر بل ښه علاج نشته.

که مريض د وهب ابن منبه درمل استعمال کړي او بيا وروسته د قرانکريم په اخرنيو دووسورتونو دم کړای شي نو الله تعالی به ورته شفا ورکړي، په دې هکله زما خپله تجربه شوي ډير مريضان

پرېږي ښه شوي ما د قرانکريم د ترجمي په وخت کې د لوړ سپيکر له لاري خلکو ته همدغه پورته نسخه ښوولي الله تعالي ورسره ښه کړي.

**دمعوذ تينو فضيلتونه:**

عَنْ عَبْدِ اللهِ بنِ خُبَيْبِ الأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: خَرَجْنَا فِي لَيْلَةِ مَطَرٍ وَظُلْمَةٍ شَدِيدَةٍ، نَطْلُبُ رَسُولَ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُصَلِّيَ لَنَا فَأَدْرَكْنَاهُ فَقَالَ: قُلْ؛ فَلَمْ أَقُلْ شَيْئاً. ثُمَّ قَالَ، قُلْ؛ فَلَمْ أَقُلْ شَيْئاً. ثُمَّ قَالَ: قُلْ قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ مَا أَقُولُ؟ قَالَ: (قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ) وَالْمُعَوِّذَتَيْنِ؛ حِينَ تُمْسِي؛ وَحِينَ تُصْبِحُ ثَلاثَ مَرَّاتٍ تَكْفِيكَ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ).

رَوَاهُ أَبُو دَاودَ؛ وَالتِّرمِذِيُّ؛ والنسائی وقال الترمذی: حديث حسن صحيح غريب. وهذا في لفظ أبي داود،

عبد الله بن خبيب انصاري ﷺ وايي چې مونږ په يوه باراني او توره تياره شپه کې راووتلو او رسول الله ﷺ مو لټولو تر څو مونږ ته لمونځ راکړي رسول الله ﷺ مو وموندو رسول الله ﷺ ماته وويل وايه ما هيڅ ونه ويل بيا رسول الله ﷺ راته وويل وايه ما هيڅ ونه ويل بيا رسول الله ﷺ راته وويل وايه ما هيڅ ونه ويل ما ورته وويل څه ووايم اى د الله تعالى رسوله! رسول الله ﷺ راته وويل قل هوالله احد او د قرانکريم دوه

اخرني سورتونه د سهار او ماښام په مهال درې كرته وايه د هر څه په نسبت همدا ستا لپاره كفايت كوي ابو داود ، ترمذي او نسائي)

عَنْ عُقْبَةَ بنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: سُوْرَةٌ أَلَمْ تَرَ آيَاتٍ أُنْزِلَتْ عَلَيَّ اللَّيْلَةَ لَمْ يُرَ مِثْلُهُنَّ؛ (قُلْ أَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ) و (قُلْ أَعوذُ بِرَبِّ النَّاسِ) رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

عقبه بن عامر ﵁ وايي چې رسول الله ﷺ وويل ته نه ګورې چې نن شپه پر ما باندې داسې ايتونه نازل شويدي چې هيڅ سارى يې نه ليدل كيږي هغه سورتونه قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس دي (مسلم شريف)

عَنْ عُقْبَةَ بنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: كُنْتُ أَمْشِي مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: سُوْرَةٌ يَا عُقْبَةُ قُلْ، فَقُلْتُ: مَا أَقُوْلُ يَا رَسُوْلَ اللهِ فَسَكَتَ عَنِّي؛ ثُمَّ قَالَ: يَا عُقْبَةُ قُلْ. فَقُلْتُ: مَاذَا أَقُوْلُ يَا رَسُوْلَ اللهِ فَسَكَتَ عَنِّي؛ فَقُلْتُ: أَللّٰهُمَّ ارْدُدْهُ عَلَيَّ؛ فَقَالَ: يَا عُقْبَةُ قُلْ: فَقُلْتُ: مَا أَقُوْلُ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ: (قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ)؛ فَقَرَأْتُهَا حَتَّى أَتَيْتُ عَلَى آخِرِهَا؛ ثُمَّ قَالَ: قُلْ. فَقُلْتُ: مَا أَقُوْلُ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ: (قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ) فَقَرَأْتُهَا حَتَّى أَتَيْتُ عَلَى آخِرِهَا. ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ

وَسَلَّمَ عِنْدَ ذَلِكَ: مَا سَأَلَ سَائِلٌ مِثْلَهُمَا، ولا استَعَاذَ مُسْتَعِيذٌ بِمِثْلِهِمَا سُوْرَةُ رواهُ النسائی».

عقبه بن عامر رضي الله عنه وايي چې زه د رسول الله ﷺ سره روان وم رسول الله ﷺ لږ وخت چپ شو بيا يې وويل ای عقبه ووايه ما ورته وويل څه ووايم ای د الله تعالى رسوله بيا يې وويل ووايه ما ورته وويل څه ووايم ای د الله تعالى رسوله! رسول الله ﷺ راته وويل قل اعوذ برب الفلق ووايه ما دغه سورت تر پايه پورې ولوسته بيا رسول الله ﷺ راته وويل ووايه ما ورته وويل څه ووايم ای د الله تعالى رسوله! رسول الله ﷺ راته وويل قل اعوذ برب الناس ووايه ما دغه سورت تر پايه پورې ولوست بيا رسول الله ﷺ وويل هيڅ سوال کوونکي داسې سوال ندی کړی او هيڅ پنا غوښتونکي داسې پنا نده غوښتي يعنې دغه غوښتنه د ټولو غوښتنو غوره غوښتنه ده او د ټولو پنا غوښتلو څخه غوره پنا غوښتنه ده. (نسائي)

مونږ په دې خبره باور لرو، چې د دنيا او اخرت ګټه او تاوان خير او شر ټول د الله په اراده کې دي هيڅوک نه شي کولای چې د الله تعالى له ارادې پرته چاته ضرر او ګټه ورسوي د دنيا او اخرت له ټولو مصيبتونو څخه د ژغورنې لاره داده چې انسان په خپلو کړو وړو الله تعالى له ځانه راضي کړي، زمونږ ګران پيغمبر مونږ ته له مصيبتونو څخه د خلاصون علاج او لاره ښئي په صحيح مسلم کې له عقبه ابن عامر څخه روايت دی رسول الله (صلي الله عليه و اله وسلم) ويلي دي چې: " تاسو خبر ياست نن شپه الله تعالى پر

ما باندې داسې دوه سورتونه نازل كړي، چې ددوي مثل په ما مخكې نه ؤ نازل شوی په تورات، زبوراو انجيل كې ددې دوه سورتونو په شان بل سورت نه شته" دعمر بن عامر په بل روايت كې راغلي چې هغه (صلي الله عليه وسلم) به خپلو اصحابو ته فرمايل چې دا سورتونو په هر لمانځه كې ولولئ (ابو داود).

عايشه (رضى الله عنها) وائي چې كله به رسول الله (ﷺ) ته ناروغتيا پېښه شوه نو دا دواړه سوتورنه به يې لوستل او بيا به يې خپل مبارك لاسونه په خپل ټول بدن ګرځول د هغو ي د رحلت په وخت كې ما دا سورتونه لوستل او د هغوي په مباركو لاسونو به مې دم كول او بيا به هغوي خپل مبارك لاسونه په خپل مبارك بدن ګرځول[1].

امام ابن كثير وايي: په چا چې كوډې شوي وي د هغه له ټولو څخه ښه علاج دادي چې هغه دي د قرانكريم دا دو وروستي سورتونه و لولي الله تعالی به ورته ارومرو شفا وركوي."

## د شيطان او انسان له شر څخه د بچ كېدو علاج:

د انسان دوه دښمنان وي يو شيطان بل انسان، الله تعالی د خپل محبوب پيغمبر په ژبه د انسان له شر څخه د بچ كېدو علاج داسې ښوولي: كه هغه بد كوي ته ورسره ښه كوه، كه هغه ستا بي عزتي كوله ته يې عزت كوه، كه هغه درباندې تيري وكړ ته

[1] ( رواه المالک )

ورڅخه بدل مه اخله، صبر کوه زه دلته د پیغمبر (صلي الله علیه وسلم) د ژوند یو مثال لیکم.
رسول الله (صلي الله علیه وسلم) له معراج څخه وروسته چې کله هغه (صلي الله علیه وسلم) ځمکې ته تشریف راوړ نو ګوري چې یوه زړه ښځه چې په سر یې یو درونډ پیټی ایښی او روانه ده، رسول الله (صلي الله علیه وسلم) پري اواز وکړ چې بوډۍ چیرته در ومي هغې په ځواب کې ورته وویل چې دلته یو سړي پیدا شوي مونږ د خپل دین څخه اړه وي او راته واي د بتانو عبادت مکوۍ د یوه الله تعالی عبادت وکړۍ، زه د هغه د شر څخه ځان خلاصوم بل ځاي ته درومم، رسول الله (صلي الله علیه وسلم) پنډ ور څخه واخیست اوتر منزل مقصود پوري یې ورسره ورسولو، کله چې رسول الله (صلي الله علیه وسلم) د هغې څخه رخصتیده نوبوډۍ ورته وویل چې ته څوک یې چې ماسره دې دومره احسان وکړ؟ رسول الله ورته وویل چې زه هماغه سړی یم د چا د لاسه دی چې خپل کلي پریښود، نو بوډۍ چې کله د رسول اله (صلي الله علیه وسلم) د خولې څخه دا خبره واوریده نو په بیړه یې پرې ایمان راووړ او بیا یې دا کلمه وویله(لا اله الا الله محمد رسول الله).
دغه پیښه هم زیاته مشهوره ده چې یوه زړه یهودنه ښځه وه چې کله به رسول الله صلي الله علیه وسلم مسجد ته روان وو نو دي به ورته په لاره کې اغزي اچول، یوه ورځ رسول الله ( ص ) مسجد ته روان وو ګوري چې په لاره کې اغزي نشته، پوښتنه یې وکړه چې

څه وجه ده چې نن بوډۍ په لاره اغزي ندي اچولي؟ داصحابو لۀ ډلي څخه يو کس ورته وويل چې هغه مريضه ده، نو رسول الله(صلي الله عليه وسلم) د هغي دپوښتني لپاره د هغي کورته ورغي، کله چې يهودني بوډۍ وليدل چې رسول الله د هغي ددومره بدو سره سره د هغي پوښتني ته ورغي نو ايمان يې پري راوړ. کوم شرير النفس چې انساني فطري صلاحيت يې بر باد کړي وي شرافت، انسانيت او احسان پري تاثير نکوي نو ددغه کس علاج به په جهاد سره کيږي لکه ابو جهل چې د رسول الله (صلي الله عليه وسلم) له دښمني څخه يې هيڅ لاس وانخيست نو بيا يې خپل انجام وليده.

د شيطان علاج په قرانکريم کې په اعوذبا الله او بسم الله د الله تعالى په ذکر او هغه ته په پناه وروړلو سر شويدي، الله تعالى دي ټول مسلمانان د انسان او شيطان له شر څخه په امان کړي امين يا رب العماليمن